

ته يې کم عقله وويل او بيا سبب د خپل دې تهمت دا ذکر کوي چې هغه تفردات لري ، سبحان الله که خبره د تفرداتو شي او پدې ځوک بې عقله ګرځي نو مونږ ته دې را وښايي چې کوم عالم او امام له دې ځخه مستثنى دى؟ کوم عالم دى چې هغه تفردات نلري؟

تفصيل نه کوو او نه د علماؤ او امامانو نومونه ذکر کوو ځکه چې ذکر کول يې له وسعې بهر دي ، بس خلاصه داچې زمونږ چيلنج دى مونږ ته دې ځوک يو عالم ، امام ، فقيه او مجتهد داسې را وښايي چې هغه په خپلو فتوو کې تفردات نلري بس دا به مو فتح وي!

بل دا هم واورئ چې د شيخ رحمه الله تفردات هم ځه داسې نه دي لکه د چا چې په شيطاني خوبونو او په ګمراه کونکو کشفونو باندې بناء وي ، بلکې هغه خو د کتاب ، سنت او د فقهاؤ د اقوالو حافظ وو ، هيڅ قول او فتوى کې داسې نه وو چې د کتاب ، سنت او يا اجماع د امت ځخه وتونکى وي او که بالفرض يومسأله کې داسې وي نو د اجتهاد په سبب بيا هم د يو اجر نه خالي نه دى ، دا به روسته ذکر شي چې موصوف کامل مجتهد وو ،

دده متعلق شيخ الاسلام امام ابن القيم رحمه الله فرمايي : **لا نعرف مسألة خرق فيها الإجماع ، ومن ادعى ذلك فهو إما جاهل وإما كاذب ،**

ژباړه : مونږ ته يوه داسې مسأله نده معلومه چې هغه په کې د اجماع مخالفت کړې وي ، نو که چا ددې دعوه وکړه دا به يا جاهل او يا هم دروغجن وي ، نقلا من كتاب حياة شيخ الإسلام ابن تيمية ص٥٥ .

دغه ډول حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه ذهبي رحمه الله په حوالې سره نقل کړي فرمايي:

**وأما نقله للفقه ومذاهب الصحابة والتابعين فضلا عن المذاهب الأربعة فليس له فيه نظير وفي موضع آخر وله باع طويل في معرفة أقوال السلف وقل أن تذكر مسألة إلا ويذكر فيها مذاهب الأئمة وقد خالف الأئمة الأربعة في عدة مسائل صنف فيها واحتج لها بالكتاب والسنة.**

ژباړه : او هغه چې نقلول دده دي فقهې لره او د صحابه او تابعينو مذاهبو لره سره د مذاهب اربعه وو ، نو په دې کې هغه هيڅ مثال نلري او بل ځاى يې فرمايلي او د هغه لاس ډېر اوږد وو د سلفو د اقوالو په معرفت کې او ډېر داسې دي چې يو مسأله ذکر کړي مګر داچې په هغې کې د امامانو مذاهب بيانوي او ده يقينا د ځلور واړو امامانو نه هم په يوشمېر مسايلو کې مخالفت کړى چې هغې کې يې ليکل کړي خو دليل يې ورته د کتاب او سنت ځخه نيولى .

( الدرر الكامنة لابن حجر ١/١٨٥ )

امام ذهبي رحمه الله مزيد فرمايي : **بحيث يصدق عليه أن يقال كل حديث لا يعرفه ابنُ تيمية فليس بحديث ، ولكن الإحاطة لله ، غير أنه يغترف فيه من بحر وغيره من الأئمة يغترفون من السَّواقي.**

ژباړه : او دا ځکه چې رښتوني تاميږي دا خبره د هغه په حق کې چې وويل شي چې هر هغه حديث چې ابن تيميه يې نه پېژني نو هغه له سره حديث نه دى ، خو دومره ده چې احاطه د علم الله ته ثابته ده ، خو البته دا ده چې ابن تيمية د بحر نه لپې ډکوي او دده نه بغير نور امامان دا د وړو لښتيو نه لپې ډکوي . ( ذيل طبقات الحنابلة ج٤ ص٥٠٠ )

موصوف مزيد فرمايي **ولقد نصر السنة المحضة ، والطريقة السلفية ، واحتج لها ببراهين ومقدمات وأمور لم يسبق إليها.**

ژباړه : او يقينا ده خاص د سنت او د سلفيت د منهج نصرت کړى دى او د هغې اثبات يې په دلايلو او داسې مقدّمو او أمورو سره کړى چې هيڅ ځوک هغې ته دده ځخه نه دي مخکې شوي، ( كتاب الذيل ج٢ ص٣٩٠)

قاضي أبو عبد الله بن الحَريري فرمايي : **إن لم يكن ابنُ تيمية شيخَ الإسلام فمن هو؟** ژباړه : كه ابن تيميه شيخ الاسلام نه وي نو بيا به څوك وي ، ( من أعلام المجددين ص٢٥ )

## هو همدا شيخ الاسلام دی

نولوستونكو فكر وكړئ هغه كوم تفردات دي چې د هغې په سبب يې د حق دشمنان كم عقله ګڼي يو داسې تفرد دي مونږ ته د هغه څوك پيش كړي چې هغه ورته د كتاب ، سنت او يا هم اجماع د امت څخه دليل نه وي نيولى ، بل داسې منقبت او عالي ميډال كوم چې تاسو وليده مسلمانان هغه چاته وركوي چې هغه دې د كامل عقل نه برخمن نه وي؟ بس دا به روسته ثابته او په ډاګه شي چې د عقل كمى په چا كې دی او ددې نسبت اصل حقدار څوك دي او څه شي دغه باطل پرست او مشركان ددې تهمت په لګولو مجبور كړي دي ، خو چې دلته د مسلمانانو مخې ته د مرتد صوفي دين مامد درواغ او تهمت څه په ډاګه كړو نو د يو څو اهل علمو هغه ثناء او مدح ذكر كوو چې هغوى د ابن تيميه رحمه الله متعلق كړې ده ،

نو واورئ! ابن تيميه رحمه الله هغه شخصيت دی چې د وخت او عصر منل شوى امام علامه شمس الدين الذهبي رحمه الله يې د جمله كمالي أوصافو د راګېرو لو څخه ځان عاجز ګڼي او فرمايي:

**وهو كبرُ من أن يُنْبِه مثلي على نعوته ، فلو حلفت بين الركن والمقام لحلفت أني ما رأيت بعيني مثله ، ولا والله ما رأى هو مثل نفسه.**

ژباړه : فرمايي او دغه ابن تيميه رحمه الله ډېر لوى دی ددې نه چې زماغوندې كس دې د هغه د صفاتو څخه خبر وركړي نو كه چېرته زه د ركن او مقام ترمنځه قسم وكړم نو ضرور به دا قسم كوم چې ما په خپلو سترګو د هغه غوندې شخصيت نه دی ليدلى او نه قسم په الله كه هغه د خپل ځان غوندې شخصيت ليدلي وي ، ( ذيل الطبقات الحنابلة ج٤ ص٥٠٧ )

علامه جمال الدين أبو الحجاج المِزّي رحمه الله د ابن تيمية رحمه الله په باره كې فرمايي **ما رأيت مثله ولا رأى هو مثل نفسه ، وما رأيت أحدا أعلم بكتاب الله وسنةِ رسوله ولا أتبع لهما منه ،**

ژباړه : ما دده پشان عالم نه دی ليدلى او نه ده د خپل ځان پشان عالم ليدلى دی او ما د الله په كتاب او د هغه د رسول په سنت ډېر پوهه لرونكى او ددې دواړو زيات اتباع كونكى له ده څخه بل هيڅ څوك نه دی ليدلى .

(الشهادة الزكية في ثناء الأئمة في ابن تيمية صـ ٤٥)

جمال الدين السرمري فرمايي : " **ومن عجائب زماننا في الحفظ ابن تيمية ، كان يمر بالكتاب مرة مطالعة ، فينقش في ذهنه ، وينقله من مصنفاته بلفظه ومعناه ".**

ژباړه : او زمونږ د زماني د عجاىباتو څخه په حفظ كې ابن تيمية وو چې ده به يوځل يو كتاب مطالعه كړ نو د هغې نقش به يې په ذهن كې راغى او بيا به يې خپلو تصانيفو كې په لفظ او معنا دواړو سره نقل كاوه .

(البدر الطالع ج١ ج/ ص ٧٠)

قاضي ابن دقيق العيد رحمه الله فرمايي : **لما اجتمعت بابن تيمية رأيت رجلا كلُ العلوم بين عينيه يأخذ ما يريد ويدع ما يريد ، وقلت له : ما كنت أظن أن الله بقي يخلق مثلك .**

ژباړه : زه چې كله د ابن تيمه رحمه الله سره مخامخ شوم نو ما وليده چې دا داسې يو سړى دی چې ګويا ټول علوم يې مخې ته پراته دي بس چې څه يې خوښه شي ترې اخلي يې او چې څه يې خوښه شي پرېږدي يې نو ما ورته وويل زه ګمان نه كوم چې الله له تاته بعد په مخلوق كې بل داسې عالم پيداكړي . (الذيل ج٤ ص٥٠٣ الرد الوافر ص١١١ الشهادة الزكية ص ٢٩)

الشيخ إبراهيم الرَقي : **به د ابن تيمه رحمه الله**

باره کې فرمایل فإن طال عمرُه ملأ الأرضَ علما وهو على الحق ، ولا بد ما يعاديه الناس فإنه وارثُ علمِ النبوة .

ژباړه : که چېرته د ابن تیمیه عمر زیات شو نو ځمکه به د علم څخه ډکه کړي او دا په حق ولاړ دی نو خامخا به ورسره خلک (باطل پرست) عداوت کوي بېشکه دا د نبوة د علم وارث دی . (حياة شيخ الإسلام ابن تيمية صـ٢١)

د نحویانو شیخ او سردار شیخ أبو حيان النحوي چې کله د ابن تیمیة رحمه الله سره ملاقات وکړ نو ویې فرمایل : **ما رأت عيناي مثله ،**

ژباړه : زما سترګو دده پشان کس نه دی لیدلی! (من أعلام المجددين صـ٢٥)

الشيخ علم الدين البرزالي هم د خپلو شیوخو په معجم کې د هغه بې شمیره أوصاف او کمالات ذکر کړي مختصریو څو کرښې د اختصار په توګه ذکر کوم فرمایي : **أحمد بن عبد الحليم بن عبد السلام بن عبد الله بن أبي القاسم بن محمد بن تيمية الحرانيُ الشيخُ تقي الدين أبو العباس الإمام المُجمع على فضله ونبله ودينه ، قرأ القرآن وبرع فيه والعربية والأصول ، ومهر في علم التفسير والحديث ، وكان إماما لا يلحق غباره في كل شيء وبلغ رتبة الاجتهاد ، واجتمعت فيه شروط المجتهدين،**

ژباړه : ابن تیمه هغه شخص دی چې په غوره والي ، زکاوت او دینداری یې اجماع شوي ده ، قران یې لوستی دی او په هغې کې یې ممتازیت حاصل کړی دی او دا ډول په عربیت او اصولو کی مقام حاصل کړي اوپه علم التفسیر اوعلم الحدیث کې یې مهارت حاصل کړی وو ، او دا یو داسې امام و چې په هر څه کې بې مثاله او د اجتهاد درجې ته رسېدلی وو او په ده کې د مجتهدینو ټول شروط جمع شوي وو . (غاية الأماني ٢/١٩١)

علامه بهاء الدين ابن سوار السبكي په شیخ رحمه الله د اعتراض کونکو متعلق خپل ملګري ته وفرمایل **والله يا فلان ما يبغض ابنَ تيمية إلا جاهل أو صاحب هوى فالجاهل لا يدري ما يقول وصاحب الهوى يصده هواه عن الحق بعد معرفته به ،**

ژباړه : قسم په الله ای فلانیه بغض نه کوي د ابن تیمیه سره مګر جاهل او یاهم بدعتي انسان جاهل خو نه پوهیږي چې څه وایي او د بدعاتو خاوند هغه خپل خواهش د حق د منلو څخه بندکړی دی روسته له دې چې څه یې وپېژنده چې دا حق دی . (الرد الوافر لابن ناصر الدين الدمشقي صـ٩٩)

علامه كمال الدين الزَّملكاني رحمه الله یې په حق کې فرمایي: **وقد ألان الله له العلوم كما ألان لداود الحديد ،**

ژباړه : ابن تیمه ته خو الله علوم داسې تابع کړی وو لکه څنګه چې یې داود علیه السلام ته وسپنه تابع یعنې نرمه ګرځولې وه . ( غاية الأماني ٢/٢٠٣ )

موصوف د شیخ رحمه الله متعلق مزید فرمایي: **كان إذا سئل عن فن من العلم ظن الرائي والسامع: أنه لا يعرف غير ذاك الفن ، وحكم أن أحدا لا يعرفه مثله ، وكان الفقهاء من سائر الطوائف إذا جالسوه استفادوا منه في مذهبهم أشياء ، ولا يعرف أنه ناظر أحدا فانقطع منه ، ولا تكلم في علم من العلوم ، سواء كان من علوم الشرع أو غيرها ، إلا فاق فيه أهله ، واجتمعت فيه شروط الاجتهاد على وجههـا ،**

ژباړه : او وو چې کله به دده نه د کوم علم د فن باره کې تپوس وکړی شو نو د لیدونکي او اورېدونکي به دا یقین راغی چې دا بغیر له دې فن نه په بل فن علم نلري او دا فیصله به یې وکړه چې دده پشان بل هیڅوک ددې فن علم نلري او د ټولو طائفو فقهاء به چې کله ده ته کښېناستل نو له ده څخه به یې په خپلو مذاهبو کې زده کړې کولې او داسې قطعا نه ده شوې چې د چا سره مناظره شوې وي او دا دې هغه ته پاتې راغلی وي او نه یې په کوم علم کې بحث کړی برابره ده چې شرعي علوم به وو او که ددې نه علاوه

، مګر دا چې دا به د هغې په اهل باندې غالب ګرځېده او په ده کې په صحيح طريقې سره د اجتهاد جمله شروط جمع شوي وو.
(تاريخ ابن الوردی ج۲ صـ۲۷۷)

دغه ډول د شيخ رحمه الله د کتاب (بيان الدليل) متعلق فرمايي: **من مصنفات سيدنا وشيخنا وقدوتنا الشيخ، السيد، الإمام، العالم، العلامة الأوحد البارع، الحافظ، الزاهد الورع، القدوة الكامل العارف، تقي الدين شيخ الإسلام، مفتي الأنام ، سيد العلماء، قدوة الفضلاء، ناصر السنة، قامع البدعة، حجة الله على العباد، راد أهل الزيغ والعناد، أوحد العلماء العاملين، آخر الأئمة المجتهدين، أبي العباس أحمدَ بن تيمية.**
(تاريخ ابن الوردی ج۲ ص۲۷۷ ذيل طبقات الحنابلة ج۴ ص۴۹۸ )

## هو دا ابن تيمية وو

نو عزتمندو مسلمانانو وګورئ دا شوه د ۷ اومې او ۸ اتمې صدۍ د اهل علمو هغه تزکيه چې د شيخ الاسلام ابن تيمه رحمه الله باره کې يې کړې ده چې د اختصار په سبب مونږ د مدحې نور کلمات ، د نورو مشايخو نومونه او عبارات ذکر نه کړل ، نو اوس دې مسلمانان د دين مامد صوفي تهمت ته سوچ وکړي چې هغه ورته کوم نسبت کړی او بيا دې د اهل علمو دې مدحو ته فکر وکړي نو ايا هغه څوک چې عقل لري او يا کمعقله وي هغه داسې کيدی شي چې د اجتهاد رتبې او مقام ته ورسيږي؟

هغه داسې کيدای شي چې محدثين ، مورخين او فقهاء دې د هغه په حق کې ورباندې په حرم کې د الله په ذات قسم کول خوښوي چې مونږ داسې کامل ، پوه او زيرک شخصيت ليدلی نه دی؟

ايا هغه داسې کيدی شي چې د محمد بن أحمد بن عبد الهادي ، د محمد بن أبي بكر ، ابن قيم الجوزية د محمد د بن أحمد بن عثمان الذهبي د محمد بن مفلح د ابن محمد المقدسي د إسماعيل بن عمر بن كثير ، د عمر بن علي البزار ، د أحمد بن حسن بن عبد الله بن قدامه د محمد بن شاكر الكتبي ، د سليمان بن عبد القوي الطوفي الصرصري البغدادي، د عمر بن مظفر الوردي المصري الحلبي ، د عمر بن سعد الله الحراني ، د محمد بن المنجا التنوخي الدمشقي وغيرهم رحمهم الله غوندې شاګردان وروزي؟
(کمافي شيخ الإسلام ابن تيمية وجهوده في الحديث وعلومه صـ۱۰۱ صـ۱۵۹) .

ايا داسې کس کم عقله کيدای شي چې د ملحلدانو په نزد د عقل بادشاهان او حکماء په دلايلو سره بې عقله ثابت کړي او لس جلده کتاب په نوم د ( درء تعارض العقل والنقل ) د هغوی په بطلان او د کمعقلۍ په ثابتولو باندې وليکي؟

## د باطل پرستو د عداوت سبب

لکه څنګه چې دا خبره په مخکې فُصولو کې بې له شک او تردد څخه ثابته شوه چې شيخ رحمه الله ته رب کريم په ځمکه او بيا د مسلمانانو په زړونو کې محبت ، ايماني احترام او مقام ځای کړی دی ، خو دا چې د عصر مشرکين او باطل پرست يې د زعم برداشت نلري ، رالږې په يو نوم او بل نوم د بې علمه مسلمانانو مخې ته د هغه د مقام غورځولو کوشش کوي ، خو بل طرف ته الله رب کريم د خپلو ايمان لرونکو بنده ګانو د دفاع وعده کړې او فرمايي : **إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ ءَامَنُوٓا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ .**

ژباړه : يقينا الله له هغو کسانو څخه دفاع کوي چې ايمان يې راوړی دی دا يقيني ده چې الله هيڅ يو خائن ، او ناشکره نه خوښوي.

## امارت په ابن تيمية طعن ولې کوي؟

مسلمانانو واورئ مونږ ستاسو په مخ کې په وطني امارت او د تصوف په جمله اهل شرک دا اواز کوو او دې واوري نن چې د دوی له لوري د ممبرونو په سر شيخ الإسلام رحمه الله ته د کمعقل کوم بې ځايه نسبت چې کيږي



او د عیب او طعن هدف ګرځي نو ددې مرکزي علت دا دی چې هغه پرون ستاسو د همصفته مرتدینو تاتاریانو خلاف په جهاد فتوا ورکړې وه او د مجاهدینو ترمنځ یې اعلان وکړ چې: **"إذا رأيتموني من ذلك الجانب وعلى رأسي مصحف فاقتلوني "** که چیرته تاسو ما د تاتاریانو په طرف ووینئ او په سرمې قران هم ایخي وي نو ما قتل کړئ،

ستاسو ننې تهمتونه د پروني هغه درد لکه کبله وجود ته راغلي چې د شیخ رحمه الله د فتوې په سبب یې ستاسو په زړونو حمله کړې او هغه هاغه فتوا ده چې ستاسو د مقتداګانو او د وحدة الوجود په بدګرده مشرانو حسین بن منصور الحلاج، محي الدین ابن عربي ، ابوفتوح شهاب الدین السهروردي ، ابن الفارض او ابن سبعین وغیره صوفیانو باندې یې ورکړې وه ، د ملحدانو او زنادقه وو حکم یې وربانـدې لګولی وو او د هغوی په کفر ، ضلالت ، حماقت او جهالت یې مسلمان ملت اګاه ګرځولی دی ،

تاسو ځکه نن د هغه نوم نشی برداشت کولی چې د هغه د زرینو أقوالو څخه دا قول مشهور دی چې **"العامة يعبدون الله والصوفية يعبدون أنفسهم** ، ژباړه: خلک د الله عبادت کوي خوصوفیان د خپل ځان عبادت کوي.

شیخ رحمه الله ځکه ستاسو د تهمتونو او ناحقه بهتانونو هدف ګرځیدلی چې هغه ستاسو په ناسکه ورونو روافضو د تکفیر فتوی ورکړې او د هغوی په بطلان یې د منهاج السنة غوندې لاجواب کتاب لیکلی دی چې ترننه د روافضو زخمونه تازه کوي او مالګې پرې شیندي!! د شیخ نه ځکه ډار محسوسوئ چې ستاسو د مشرانو منکري الصفاتو معطله او جهمیه وو په رد کې یې الحموية الکبری ، العقیدة الواسطية او التدمرية کتابونه لیکلي دي!! په اړه یې ځکه د دروغو او تهمتونو څخه کاراخلئ چې هغه په الفرقان کتاب کې ستاسو او ستاسو همصفته د شیطان دوستان ګرځولي دي، تاسو ته ځکه د هغه مسلّم مقام د منلو وړنه دی چې تاسو او ستاسو دغه جمهوري او وطني امارت د هغه د فتوی له رویه طائفه ممتنعه کې حسابیږي چې په مقابل کې یې په مسلمانانو باندې جهاد فرض عین ګرځیدلی دی.

## د دین مامد څېړه او د امارت مخ

اوس د مسلمانانو مخې ته یو څو ښکاره ثبوتونه او دلایل پدې پار عرض کوم چې د امارت وطني د ممبر نه چې د کمعقل کوم نسبت شیخ رحمه الله ته شوی ددې ناکاره صفت لایق خپله ددې امارت مشرتابه او د دین مامد په څېر نور مسؤلین دي او دا داسې دلایل دي چې په خپله خوارکي دین مامد صوفي په خپله خوله باندې ویلي دي چې د عقل والاو په نزد، نو دا د دین مامد له خوانه امارت ته په مخ د کلکې څپېړې د ورکولو او د امارت د مشرتابه او مسؤلینو څخه د جامو ویستلو مترادف خبرې دي چې دغه خبرې یې ستاسو مخې ته بړدم ترڅو ددې سره سره د تصوف د عقل نتیجه هم ووینئ چې په ځان یې د بې عقلۍ سره سره د حماقت او سفاهت څومره بې شمیره دلایل ثابت کړي دي!

## د امارت قاضیان!!

صوفي دین مامد وایي : په موجوده نظام کې فارغ لا نه وي او پوښتنه کوي چې چیرته به د قاضیتوب ځای راته پیداشي ، ځکه په مدرسه کې تنخوا ، د مفتی توب تنخوا او د قضا تنخواه څومره فرق لري؟

## زمونږ تبصره

د دین مامد دا خبره مونږ هم تائیدوو ځکه

چې دې باب کې یو مقوله ده چې : صاحب البیت أدری بما فیه ،، یعنې د کور ښښتن ډېر خبر وي په هغه څه چې په کورکې یې دي ، نو دین مامد صوفي باره کې مجبور یو چې دا ووایو چې "إن الكذوب قد يصدق " یقینا دروغجن هم کله کله ریښتیا وایي . نو لوستونکو کمعقل څوک شو؟ شیخ الاسلام ابن تیمیة چې د امت أهل علمو یې په امامت او علمیت اجماع کړي؟ که د امارت مشر تابه چې نا أهله او بې علمه یې د قضاء منصبونو ته ځانونه رسوي او د دنیا د مال او متاع د حصول لپاره کوششونه کوي چې قاضیان شي! سره له دې چې په اسلام کې د عهدې طلب حرام دی او دوی بیا سره د نا أهلی دا کړنه ترسره کوي خو د امارت مشران یې مخه نه نیسي ځکه دا زمینه ورته امارت برابره کړې ده .

## إمارت کې مسجدونه وتړل شول!

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس صوفي دین مامد په خپله خوله وایي : نن د اطرافو مدرسې اکثره خرې شوې ، جماتونه بې امامه شول ، وتړل شول .

## زمونږ تبصره

نو لوستونکو کمعقل څوک شو؟ شیخ الاسلام ابن تیمیة چې د امت أهل علمو یې په امامت او علمیت اجماع کړې؟ او که د إمارت مشرتابه چې د حاکمیت په مناطقو کې یې مدرسې خرې او مساجد وتړل شو؟ نو ایا اسلامي حاکم او اسلامي نظام داسې وي؟ دېته شرعی نظام ویلی شي؟

## امارت د رعیت سره خیانت کوي!

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس صوفي دین مامد په خپله خوله وایي : حتی یو ځای کې د افسوس ځای دی د چهارشنبې په ورځ مړی شوی وو د جنازې څوک نه وو بیا وایي هغه کلیوالو وویلې سبا ته یې کېږدئ دغه رئیسان صاحبان چې په دفترونو کې کار کوي د جُمعې په شپه کوروته راځي جنازه به مو بیا هغوی وکړي!

## زمونږ تبصره!

نو چې کله د یو اسلامي نظام دعوی کونکی اقتدار او حاکم داسې وي چې رعیت کې یې مړی د جنازې او تدفین د حق څخه داسې محروم پاتې کیږي نو لوستونکو کمعقل څوک شو؟ شیخ الاسلام ابن تیمیة چې د امت أهل علمو یې په امامت او علمیت اجماع کړې؟ او که د امارت مشرتابه چې د حاکمیت لاندې مناطقو کې یې رعیت د چهارشنبي په ورځ مړ کیږي او د جنازې یې لپاره یې څوک نه پیداکیږي تردې چې جمعې ته پاتې کیږي!؟ لاحول ولا قوة الا بالله .

## هو دا یې د مشرانو عقیده ده!!

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس صوفي دین مامد وایی : د دغه ملت په قربانیو مونږ دې حکومت ته را رسېدلي یو ، د دغه عوامو په کومکونو د ولس یوه یوه کس خپل کور د مجاهد په سر باندې قربان کړی!

## زمونږ تبصره

مسلمانانو خه وګورئ د امارت د مشرتابه او جنګیالو ټول هدف همدا وه چې حکومت ته ورسي فقط شریعت او د اسلام د حاکمیت نیت یې قطعا نه وو نو ځکه خو دین مامد وایي چې مونږ حکومت ته ددې عوامو په قربانیو رسېدلي یو ، د الله مدد او نصرت ته یې اشاره قدر هم ونه کړه ځکه چې دین مامد پدې پوهېږي چې د کرسی او اقتدار لاس ته راوړنې او د وطنیت د نظریې په اشراف کې جنګ نه جهاد دی او نه په دې کې د الله مدد وي بلکې د مهلت به وجه یو چانس وي الله یې ورکوي تر څو حجتونه تمام او اعذار قطع کړي نو بیا یې چې رانیسي نو د هغه رانیول یقینا ډېر سخت وي ،

نو لوستونکو کمعقل څوک شو؟ شیخ



الاسلام ابن تیمیة چې د امت أهل علمو یې په امامت او علمیت اجماع کړې؟ او که د امارت مشرتابه چې جنګ یې فقط د حکومت لاس ته راوړلو لپاره وو؟

## د عوامو سره امارت خیانت کوي!!

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس صوفي دین مامد په خپله خوله وایي : مونږ ته شورا ته یو سپین ږیری راغی کوچی و د لوګر ویل یې په تېر رژیم کې به ما مجاهدینو ته پټه شپه ورکوله چا جاسوسي را باندې وکړه په کور مې بمبار وشو نهه نفر مې ځای پرځای شهیدان شول .....

## زمونږ تبصره

مسلمانانو وګورئ او واورئ دا هغه عوام دي چې دې وطني طالبانو د شریعت د تنفیذ په نوم د دوی کورونه د خپل وطني جنګ سنګرونه ګرځولي وو هغوی هم پدې امید او طمع دغه هر مصیبت ته غاړه د همدې لپاره ایخې وه چې دوی به د الله شریعت راولي خو نن افغانستان کې د الله د شریعت پرځای د کفارو شریعت حاکم دی او د الله د شریعت مخه نیول کیږي ، بل دا چې دین مامد او ده ته ناست احمقان دومره فکر نه کوي چې أمریکا ستا د رعیت کور کور کې د قتلونو امبار جوړ کړی دی خو نن ورته د امارت مشرک سراج الدین دښمن نه وایي! ملاکبیر مرتد نن د امارت حاکمیت د امریکا دپاره امن تصور کوي! عباس ستانکزی مرتد یې نن ارمان کوي چې کاش امریکا بیرته افغانستان ته راشي! مشهور احمق د زمانې امرخان موتاقي پلن ښتې ورته سحر او ماښام همدا شیطاني منتر تکراروي چې مونږ په رسمیت وپیژنئ! هیبتوف بې علمه یې هم په نړیوال قانون ایمان راوړ ،

نو لوستونکو کمعقل څوک شو؟ شیخ الاسلام ابن تیمیة چې د امت أهل علمو یې په امامت او علمیت اجماع کړې؟ او که د امارت مشرتابه چې امریکا ورته رعیت کې کور په کور د ښځو ، ماشومانو او بوډاګانو په شمول ډلې ډلې أفراد په بې رحمی سره قتلول او دا پرځای ددې چې انتقام تړې واخلي نن د امریکا سره د دوستی لاسونه ورکوي او واپس یې افغانستان ته د راتلو ارمانونه او عذرونه کوي!؟

## د امارت د جنګیالو د غیرت کچه!

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس صوفي دین مامد په خپله خوله وایي : حتی مجاهدین ماته غړېدلي وایي د چاپو په وخت کې دننه په کور کې د ښځو په مابین کې یې مونږ ته ځای اچولی چې په ښځو کې ایننه پټ ویده شئ چې داسې خیال څوک ونه کړي چې دلته پردی سړی دی!

## زمونږ تبصره

لوستونکو ستاسو به هم به زړه کې دا خبره تاویګي راتاویګي چې دا صوفي دین مامد د امارت سره کومه دشمني لري چې جنګیالي خواران داسې شرموي او د مشرتابه حماقت یې راښکاره کوي؟

نو جواب دا دی چې دا هغه څه دي چې د امارت په صوفیانه منهج او شریعت کې غیرت او بهادري تصورکیږي نو ځکه خو دین مامد خپله تور زني هم په فخر سره بیانوي او وایي: ماته خپله یو کس وویلې په یو وخت کې چې دلته یو څه مشکلات وو ویل زما کورته دننه رازه د ښځو په مابین کې وده کېږه!

الله اکبر دا یې د رئیس عملاء غیرت او بهادري چې د ښځو منځ کې پټیږي او هغه هم نامحرمو سره! خو خیر وحدت الوجود کې هسې هم دغه کارونه پروا نلري ، پرون که د دوی پیر ضامن جلال ابادي رنډیو ته د زنا اجازه ورکوله او ورته ویل یې چې زنا کونکې او چاسره چې کیږي دې کې فرق نشته ، نعوذ

بالله تعالی دا ټول یو الله دی . کمافي تذکرة الرشید ص والعیاذ بالله تعالی نقل کفر کفر نباشد نو نن که پیرصوفي دین مامد ځان او جنګیالو ته د نامحرمه ښځو سره دشپې کولو اجازه او فتوی ورکوي نو دا څه نوي خبره نه ده ځکه خو وایو چې کشران یې پدې ټولو کړنو کې د مشرانو پیروي کوي او دا دوی ته جائز دي د دوی د اعتقاد موافق قطعا عیب نه ګڼل کیږي او نه یې په مجلسونو او محفلونو کې په یادونه شرم او عار محسوسوي!!

ها خو بیا دا جدا خبره ده چې د اسلام په شریعت کې دا ډول کړنې او صفات بیا حد درجه بې غیرتي او ناروا بلل کیږي ، د شرک داعي دین مامد ځان اوس دومره نه پوهیږي چې څه وایي او ددې نه څه معنا راولاړیږي أفسوس یو طرف دا دعوه کوي چې افغانستان یې په زور او جنګ فتح کړی! خو بل طرف یې بیا د جنګیالو حال دادی چې د جنګ له ډاره د نامحرمه ښځو سره په بړستنو کې بیده کیږي!

## شیخ الاسلام قتال کونکی مجاهد وو

خو که ددې برعکس تاسو لږ د شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله بهادري ، غیرت او ایماني شجاعت ته زیرشی نو موصوف رحمه الله یو د هغو علماؤ څخه وو چې د حق د دفاع او نصرت لپاره یې د قلم سره سره توره هم استعمال کړې ده ، موصوف هغه عالم وو چې عمل به یې د قول تصدیق کولو د ټول امارت په مشرانو او کشرانو تېرو شوو او پاتې شوو کې به څوک مور راوړی د هغه د غیرت د ۱۰۰ سلمې حصې اندازه هم پېش نه کړی شي اګرچې مسلمان او مرتد هسې هم یوشان نه وي خو علی سبیل المثال یې وایو .

ابن عبدالهادي رحمه الله روایت کوي فرمایي چې ماته د تتار سره د شام د لښکر څخه یو امیرالحرب چې د مضبوط دین او رشتوني لهجې مالک وو وفرمایل چې د تتارسره د جنګ په وخت کې راته ابن تیمیة رحمه الله وفرمایل **یا فلان أوقفني موقف الموت،** ای فلانیه ما د مرګ پرځای کې ودروه! نو هغه فرمایي **فسقته إلى مقابلة العدو وهم منحدرون كالسيل تلوح أسلحتهم من تحت الغبار المنعقد عليهم .**

ژباړه : نو ما روان کړ د دشمن مخې ته مې ودراوه او دښمن داسې راروان وو لکه د سیلاب چې أسلحې یې د هغو ګردونو لاندې چې پر دوی دپاسه وو ږرقېدلې نو بیا مې ورته وفرمایل : **يا سيدي هذا موقف الموت ، وهذا العدو قد أقبل تحت هذه الغبرة المنعقدة ، فدونك وما تريد** ؛ ژباړه : ای مشره دا د مرګ ځای دی او دا دی دښمن چې راروان دی ددې دوړو نه لاندې چې پر دوی دپاسه دي ، نو اوس ته او هغه چې ته یې اراده لرې نو فرمایی : **فرفع طرفه إلى السماء ، وأشخص ببصره ، وحرك شفتيه طويلا ، ثم انبعث وأقدم على القتال .....حتى فتح الله ونصر ،**

ژباړه : نوپس هغه خپل مخ اسمان طرف ونیوه او سترګې یې اسمان ته نیولې وې او شونډې یې ډېر وخت خوځولې بیا راوګرځېده او جنګ ته یې مخه کړه تردې جنګ کې لګیاوو چې الله فتح او نصرت راولیږه .

( العقود الدرية ص۱۷۷)

نوچېرته د ۷ صدۍ مجدد عالم او مجاهد او چېرته د اوسنۍ زمانې د تصوف مشرکان او وطني حماریان ، هغه به د مرګ ځای په جهاد کې لټولو او دوی د جنګ له ډار څخه د نامحرمه ښځو سره په برستنو کې تر سحره شپې سبا کوي ، په الله قسم چې تر منځ یې د اُوم اسمان او د لاندې اُومې ځمکې د فاصلې نه زیات فرق موجود دی خو جهال پدې نه پوهیږي .

## خو د امارت جنګیالي برسـتنو کې پټیږي

الغـرض همـدا وجـه ده چې پدې نامراده امارت کې د اخلاقي فساد کچه د حدنه واوښته ، جنګیالي یې په همدغه ډول ازادانه شپو تېرولو عادت وو چې قاري سعید خوستي عرف قاري بېلچه یې نن دا کانې وکړې!

جنګیالي یې په همداسې شپو کولو عادت وو چې حقبین خان نن یې داسې کانې وکړې!

جنګیالي یې په همدې ډول شپو کولو عادت وو چې د بریښنا رئیس او د قندهار د والي اوخې حاجي امان الله او د فاریاب صلاح الدین او دغه ډول نورو یې هم دې ته ورته کانې وکړې ،

ځکه چې د تصوف دنیا کې دغه ډول کړنې عیب نه ګڼل کیږي ، نو د امارت مشرتابه ته خو دومره لږ په خپلو جنګیالیو زړه سوانده پکار وه چې دې خوارانو له ډاره پرون د پردو ښځو سره شپې کولې

خو نن یې بیا همدا جنګیالي د امریکا او د هغې د جملې متحالفینو ساتونکي او چوکیداران وګرځول!

نو لوستونکو کمعقل څوک شو؟ شیخ الاسلام ابن تیمیة چې د امت أهل علمو یې په امامت ، علمیت ، جهادي کارنامو او حماسو باندې اجماع کړې؟ او که د امارت مشرتابه چې د کفارو له ډاره یې جنګیالي د نامحرمو ښځو سره بسترو کې پټیږي او بیدیږي او دایې واپس د همدې کفارو په چوکیدارۍ تعینوي؟

## نامحرمه ښځې او د امارت جنګیالي

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس مرتد صوفي دین مامد په خپله خوله د زابل د یوې چاپې قیصه کوي وایي : عبدالله سرحدي راسره غږېده چې محاصره شو امریکایان راغلل چاپه یې واچوله د وتلو لار نه وه کلیوالو دا قرباني ورکړه چې په موټر سایکلو چا خپله ښځه راپسې سپره کړه چاپسې یې لور سپره کړه چاپسې یې خور سپره کړه چې د کلي نه ځان په دغه طریقه وباسئ .

## زمونږ تبصره

هو دا د نرۍ فاتحین دي!! دا د اقصی ازادونکي دي! دا هغه ځوانان دي چې ټول افغانستان یې د امریکا او د هغې د متحالفینو څخه په زور فتح کړی دی! سبحان الله دشمن ورپسې کورته ورغلی اسلحه ورسره لاس کې اسلحه پټوي او خپله دپردو ښځو سره په موټر سیکلو له صحنې تېخته کوي!!

دا یې د ټول غیرت او حیا کچه ده او بیا یې ډوزې ګورئ چې ځانونه د نړۍ فاتحین ګڼې لاحول ولاقوة الا بالله .

لوستونکو کشران یې نه ملامتوو مشران او رئیسان یې دې کارته اماده شوي چې د مشکل په وخت کې د پردو ښځو ترمنځه بیده شي نو کشران خو یې خو دا عیب نه ګڼې ددوی پدې ډول کړنو ډېر تفصیل ته ضرورت دی او د شریعت ډېرې نصوص ددې په رد کې موجود دي خو د اختصار په بناء یې نه ذکر کوو ځکه دا خو هغه اتفاقي محذورات دي چې هیڅ عقل لرونکی یې منلو او جواز ته تیار نه دی خو امارت دا هرڅه جایز ګڼې نو اوس بیا لوستونکو ته وایو چې کمعقل څوک شو؟ شیخ الاسلام ابن تیمیة چې د امت أهل علمو یې په امامت ، علمیت ، جهادي کارنامو او حماسو باندې اجماع کړې؟ او که د امارت مشرتابه چې د کفارو له ډاره یې جنګیالي د نامحرمو ښځو په مرسته پرون په موټر سایکلو د قتال له صحنې څخه تختېدل خو نن همغه امریکا دښمنه نه ګڼې بلکې دوسته یې بولي او د دفاع سوګندونه یې پورته کوي؟

## امارت کې قاضیان رشوتونه اخلي

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس مرتد صوفي

دین مامد په خپله خوله وایي :

دغه ملت مونږ پریښی د علم یې پروا نلرو د خدمت دعوی ده چې مونږ اَمارت اسلامي ته خدمت کوو د خدمت دعوی نده نیتونه خراب دي روپۍ هلته دېږي دي یو والی صیب راته ویلي څه علماء راغلل چې دغه امر بالمعروف او نهي عن المنکر کې که مونږ ته وظیفې راکړې ماورته وویل ولې په درس لګیا یاست ، په امامت لګیا یاست د دین خدمت ده ویل هلته خدمت عام دی په ټول ولایت کې به یې کوم داخو په یوه جماعت کې خدمت دی چې کله دلته مقرر شول څه وخت بعد د قضا پوستونه راغلل نو امر بالمعروف کې خو تنخواوې کمې دي قاضیان صاحبان خو چې دا خلک حلالوي دا خو یولاک شل زره او اتیازره او نوي زره دي دغه ملایان بیا راغلل چې هلته په عهدو کې هم وو چې مونږ قضا ته امتحان ورکوو نو ماورته وویلې چې ولې د امر بالمعروف خدمت خوعام دی په ولایت کې نو اوس بېرته ولې قضا ته راځۍ او په یوه کوټه کې کښېنئ ؟

## زمونږ تبصره

دلته هم مرتد دین مامد د امارت د نقشې او منهج په خه انداز کې د پېش کولو کوشش کړی بیا مجبور یو د انعام توګه ورته ووایو چې **" إن الکذوب قدیصدق "** هو یقینا د امارت جمله مشران او کشران همداسې دي چې دا ښکاره دلیل دی په حماقت او نا أهلیت د رهبر ددوی ، دا دلیل دی پدې چې امارت کې هریو د اوچت منصب او ډېرو پیسو پسې ګرځیږي بس دین مامد یې حقیقي حال بیان کړی ، او دا هم تري څرګنده شوه چې د امارت قاضیان رشوتونه اخلي څکه خو یې د قاضیانو د تنخواوو او رشوتونو متعلق ښکاره وویل چې : دغه قاضیان صاحبان خو چې دا خلک حلالوي دا خو یولاک شل زره او اتیازره او نوي زره دي ...الخ

نو لوستونکو دا که اوس هرڅه چغې ووهي چې **" د جرحې په شکل یې نه یایم د یقظت په شکل یې یایم "** خو حقیقت همدادی چې څه یې ویلي دي ، صوفي دین مامد د امارت د مشرانو او ددوی د نافذ کړده قانون حقیقت او حیثیت او د رعیت سره په خیانت ښه لیکچر ورکړی چې دا خوارکی خپله هم پدې کې پوره برخه لري خو چې د زانې او د کیشپ تقلید او له هغې سره مشابهت خوښوي هغه خوارکی به څه پوه شي .

## دا د هیبة الله حیثیت دی!

د امارت د کابل د عملاؤ رئیس مرتد صوفي دین مامد په خپله خوله وایي :

....شیخ صیب مبارک (هیبتوف) ته مې ویلي چې زه دا د شوری کارونه نشم کولی څکه د درسونو کې مصروف یم ، راته یې ویل خیر یو کال یې پرېږده خو دا کار مه پرېږده ماورته وویل نه یې شم پرېښودی ، ماویل قسم په خدای دی چې ټول اَمارت راکوې که د یوې ورځې یوحدیث باندې یې ورکړم ... الخ .

## زمونږ تبصره!

لوستونکو د مرتد دین مامد او هیبة الله دغه مکالمه کې دوه مهمې خبرې نوټ کړئ اول که بالفرض ومو منله چې اسلامي نظام دی مدرسو کې یې هم حق درس کیږي نو سوال دا دی چې هبة الله ولې یو کال دین مامد د درس نه بندوي دین مامد چې مخکې د امارت د راتلو سره د اطرافو د مدرسو د شروالي کوم خبر ورکړ دا اعتراض دلته په هبت الله خان نه راځي؟ نو د دین مامد دلته پدې خبر د څان صفت مقصود دی که د هبت الله مذمت تپوس تري پکاردی ،

دویمه خبره دا چې ددوی په اصطلاح دا یې أمیر المؤمنین دی نو د یو امیرالمؤمنین دا حیثیت وي چې هغه ورته امر کوي او دا ورته په قسم جواب کوي چې که ټول امارت راکوي زه دا کار نه کوم؟!!

داخو مونږ په قطعي ډول وایو چې نه هبته الله شرعي امیر دی او نه یې طاعت په مسلمان واجب دی ، نه دا اونه یې دغه لښکر او مسؤلین مسلمانان دي ځکه دوی طائفه ممتنعة ده چې په مسلمانانو یې پرخلاف جهاد فرض عین ګرځېدلی خو چې دوی بیاهم سربېره پردې داسلام دعوی کوي او هیبتوف ته امیرالمؤمنین وایي!!!

نو د مثال په طور ورته وایم چې د امیرالمؤمنین حیثیت دا وي چې هغه تاته امر کوي او ته ورته قسمونه کوه چې که ټول امارت راکوي زه دا کار نه کوم؟ په شریعت کې د امام دا حق وي؟ خو دوی ته به زړونو کې ښه پته ده چې حق د طاعت قسم بالله که لري خو بس د مزو او د مال ګټلو وخت دی د شرعي مصطلحاتو نه ګټه پورته کړه او بې علمه مسلمانان دوکه کړه ،

نوځکه خو یو اچار جوړ دی د امارت نه ، سیکانو ته هم وظیفی ورکول کیږي روافض خو یې بیخي د أدې بچي ګرځېدلي ، د قضا او منصبونو پسې یې هر نا أهل لګه د لېونو سپو داسې لېوني ګرځي ، ددې امارت په راتلو سره مدرسې شاړې شوې! جماتونه وتړل شو د جنازې ملا نه پیدا کیږي او بیاهم اسلامي نظام لاحول ولاقوة الا بالله تعالی .

## د صوفي دین مامد علمي مبلغ!!

په اخر کې د لوستونکو توجه ددین مامد صوفي چې د امارت له لوري د کابل د عملاؤ رئیس دی لږ د هغه علمي مبلغ ته راګرځوو دین مامد په دغه ۷ دقیقوي کلیپ کې چې ما ته رارسېدلی یو څو علمي خطاوې کړي یو دا چې د قران کریم د سورة الحشر د ۹ نمبر ایت حصه یې غلطه لوستې او د انصارو په تائید کې ایت داسې لولي " وَالذین َتَبَوُؤ الدار " دلته یې د با نه بعد په واو باندې هم ضمه یعنې پېښ لوستی او حال دا چې دغه ایت په قرآن کې داسې دی **وَالَّذِينَ تَبَوَّءُو الدَّارَ** همدارنګه نوموړي دوه ځله د اَمارت کلمه لوستې ده حال دا چې أمارت په زبر د همزې سره دا نښې او علامې ته ویلی شي اقتدار ته چې ویل کیږي نو هغه إمارت دی د همزې په کسرې یعنې زېر سره ، نو دا هغه ښکاره غلطیانې او خطاګانې دي چې د دین مامد بې علمي ، کمعقلي ، جهالت او حماقت په ګوته کوي خو افسوس چې د امارت وطني اخوندان یې شمس المشایخ ګڼي،

بس خلاصه دا چې افسوس د هغه چا په حال چې د یو وړو کې ایت عبارت صحیح لوستلی نشي ، د اَمارت او اِمارت ترمنځه فرق نشي کولی او که مطالبه ترې وکړو نو په غیر حانث قسم سره یې وایو چې یو صفحه عبارت د شیخ رحمه الله د الفتاوی الکبری څخه هم نه شي لوستی نو داسې د ګند نه ډک مشرک ، د جهل نمونه او مغلظ مرتد راپورته کیږي او د شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله مذمت او ګستاخي کوي ، شاعر رښتیا ویلي :

**وإذا أتتك مذمتي من ناقصٍ**
**فهي الشّهادة لي بأني كامل**

ژباړه : کله چې هم تاته زما بدي د کوم ناقص انسان څخه راورسېده ، نو دا به ګواهي وي زما لپاره پدې چې زه یو کامل شخص یم ، وبالله تعالی التوفیق والحمد لله رب العالمین والصلاة والسلام علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم .





**الحمد لله الذي أمر بالإنفاق في سبيله، و يُضاعف فيه الأجر والثواب لمن يشاء من عباده ، والصلاة والسلام على أجود الناس في خلقه أمابعد.**

**عزتمندو مسلمانانو!**

تيرو برخو کې د جهاد بالمال د اهميت او فضيلت ترڅنګ د رسول الله صلی الله عليه وسلم او صحابه کرامو د جهاد بالمال نمونې ذکر شوې وې او حکم د جهاد في سبيل الله هم بيان شوی و ، دې برخه کې به په د انفاق في سبيل الله په ادابو او مواضعو خبره کوو او تر څنګ به يې د اسلامي نظام په اقتصادي منابعو او د باطلو تنظيمونو په اقتصادي منابعو هم رڼا اچوو.

## د إنفاق في سبيل الله آداب:

دا چې انفاق في سبيل الله يو مهم او له خيرونو څخه ډک عمل دی نو په همدې اساس مؤمن ته پکار دي چې دا عمل د قرآن او سنت موافق اداء کړي ، ترڅو د خپل رب په دربار کې قبول شي او انسان ته د دنيا او اخرت د ثوابونو او بدلي سبب وګرځي ، دا ياد لرل پکار دي چې د صدقې قبولوالی او غوره والی د صدقې د حجم او ډيروالي پورې نه دی ، بلکې قبلوالی او غوره والی يې د اخلاص او ادابو پورې تعلق لري ، نو په همدې اساس پدې باب کې په هغه شرطونو او ادابو خبره کوو چې قران او سنت د انفاق في سبيل الله لپاره ذکر کړي ، چې د هغې له جملې څخه:

**١ـ أن تكون لوجه الله عز وجل .**

صدقه او انفاق في سبيل الله بايد د الله عزوجل د رضا په خاطر ورکړل شي ، يعني مؤمن بايد دې عمل کې اخلاص وکړي او خپل نيت صحيح کړي .

الله تعالی فرمايي:

**لَّا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِّن نَّجْوٰهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ أَوْ إِصْلٰحٍ بَيْنَ النَّاسِ وَمَن يَفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا** [سُورَةُ النِّسَاء : 114]

ژباړه: د خلکو په پټو مجلسونو کښې زياتره څه ښېګڼه نه وي. هو! که څوک په صدقې او خيرات لارښوونه وکړي يا د کوم ښه کار لپاره يا د خلکو په چارو کښې د اصلاح کولو لپاره چا ته څه ووايي، نو البته دا ښه خبره ده، او څوک چې د الله د رضا لټولو په خاطر داسې وکړي، هغه ته به موږ لوی ثواب ور په برخه کړو؛

حديث کې هم راغلي:

**عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَ : " إِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِي بِهَا وَجْهَ اللَّهِ إِلَّا أُجِرْتَ عَلَيْهَا حَتَّى مَا تَجْعَلُ فِي فَمِ امْرَأَتِكَ "** (صحيح البخاري)

ژباړه: د سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دی ، هغه خبر ورکوي چې نبي صلی الله عليه وسلم وويل: يقيناً ته نه خرچ کوې يو څيز چې طلب کوې په هغې سره د الله رضا مګر الله به په هغې اجر درکوي تر دې چې ته د خپلې بي بي په خوله کې (کوم طعام) ږدې.

**٢ـ ألا تكون من أجل الرياء والسمعة**

صدقه او انفاق في سبيل الله به د رياء ، ځان ښودنې او شهرت له وجې نه ورکول کيږي.

الله تعالى فرمايي:

**وَالَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوٰلَهُمْ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْءَاخِرِ وَمَن يَكُنِ الشَّيْطٰنُ لَهُ قَرِينًا فَسَآءَ قَرِينًا** [سُورَةُ النِّسَاء : 38]

ژباړه: او هغه خلک هم د الله نه خوښيږي چې خپل مالونه يوازې خلکو ته د ښودلو لپاره لګوي او په حقيقت کښې نه پر الله ايمان لري نه د اخرت په ورځ. او شيطان چې د چا ملګری شي، نو هغه ډېر بد ملګری دی.

**٣ـ أن تكون من كسب طيب.**

صدقه او انفاق في سبيل الله بايد د حلال ، پاک او کره مال څخه ورکړل شي، حرام او نجس مال صدقه کې ورکول صحي ندي.

الله تعالی فرمايي:

**يٰأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبٰتِ مَا**

**كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغْمِضُوا فِيهِ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ** [سُورَةُ البَقَرَة : 267]

ژباړه: اې مؤمنانو! کوم مالونه چې تاسې ګټلي دي او کوم شیان چې موږ ستاسې لپاره له ځمکې څخه رایستلي دي، د هغو ډېره غوره برخه د الله په لار کې ولګوئ. داسې نه چې د هغه په لار کې د ورکړې لپاره د ډېر ناکاره شي د ورکولو کوښښ وکړئ؛ په داسې حال کې چې که هماغه شی څوک تاسې ته درکړي، نو تاسې به هیڅکله د هغه اخیستلو ته زړه ښه نه کړئ، مګر دا چې د هغه په قبلولو کې له سترګو پټولو څخه کار واخلئ. تاسې باید پدې پوه شئ چې الله بې حاجته او د ډېرو غوره ستاینو والا دی.

همدارنګه بل ایات کې الله تعالی فرمایي:

**لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ** [سُورَةُ آل عِمرَان : 92]

ژباړه: تاسې نیکی ته هیڅکله نشئ رسیدای ترڅو خپل هغه شیان (د الله په لار کې) ونه لګوئ چې تاسې ته ګران وي؛ او څه شی چې تاسې ولګوئ، الله پرې عالم دی.

**۴ـ أن لا تكون بمنٍّ ولا أذى حتى لا يبطل أجرها.**

صدقه او انفاق في سبيل الله کې به زیادونی (احسان) یا ورکونکي ته تکلیف ورکول نه وي ترڅو یې اجر باطل نشي.

الله تعالی فرمایي:

**الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَٰلَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَآ أَنفَقُوا مَنًّا وَلَآ أَذًى لَّهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ** [سُورَةُ البَقَرَة : 262]

ژباړه: کوم خلک چې خپل مالونه د الله په لار کې لګوي او د لګښت څخه وروسته پر چا احسان نه کوي او نه ازار ورکوي، د هغو ثواب د هغو د رب سره دی او پر هغو څه وېره، غم او خپګان نشته.

همدارنګه بل ایات کې الله تعالی فرمایي:

**يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تُبْطِلُوا صَدَقَٰتِكُم بِالْمَنِّ وَالْأَذَىٰ كَالَّذِى يُنفِقُ مَالَهُۥ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْءَاخِرِ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُۥ وَابِلٌ فَتَرَكَهُۥ صَلْدًا لَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوا وَاللَّهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكَٰفِرِينَ** [سُورَةُ البَقَرَة : 264]

ژباړه: اې مؤمنانو! خپلې صدقې په احسان بارولو او ازار رسولو، د هغه چا په څېر مه خاورې کوئ، چې خپل مال محضې خلکو ته د ښودلو لپاره لګوي او نه یې پر الله ایمان وي او نه پر اخرت. د هغه د لګښت مثال داسې دی، لکه یوه ښویه تیږه چې دوړه پرې ناسته وي، کله چې باران پرې ووریږي، ټوله دوړه تري یوسي او تیږه هماغسې ښویه پاکه پاتې شي. دې خلکو چې په خپل ګومان سره د صدقې کومه نیکي ګټلې ده، له هغې څخه هیڅ شی د هغو لاس ته نه ورځي، او کافرانو ته الله سمه لار نه ښایي.

۵ـ أن تُخفى ولا يُجهر بها، إلا أن تكون هناك مصلحة في إظهارها.

باید صدقه او انفاق په پټه طریقه ورکړی شي مګر که کوم مصلحت په ښکاره ورکولو کې وي بیا به مشکل نه وي.

الله تعالى فرمایي:

**إِن تُبْدُوا الصَّدَقَٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ وَإِن تُخْفُوهَا وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّـَٔاتِكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ** [سُورَةُ البَقَرَة : 271]

ژباړه: که خپل صدقات په ښکاره توګه ورکړئ نو دا هم ښه ده، او که په پټه یې اړو کسانو ته ورکړئ، نو دا ستاسې له پاره ډېره غوره ده؛ ستاسې ډېر ګناهونه په دغه شان عمل سره له منځه ځي. او هر څه چې تاسې کړي وي، الله هرومرو پرې خبر دی.

نو دا هغه اداب دي چې باید هر مؤمن یې لحاظ وساتي ترڅو مالي جهاد او انفاق في سبیل الله یې د الله عزوجل په دربار کې قبول شي ، او د اجر څخه



محروم نشي.

## ابواب الإنفاق في سبيل الله:

يقينًا اسلام يواځنی هغه دين دی چې خپل پيروان يې د تل لپاره اجتماعي او فردي همكاريو ته هڅولي دي او د يو بل سره ښېګڼې او محبت ته يې ترغيبات وركړي دي ، د يتيم لاس نيول، د محتاج سره كومك او هغه ته مال وركول، صله رحمي كول، د مريض عيادت او تنګ لاسي ته مهلت وركول او يا يې بخښي ورته بخښل، د ظالم او مظلوم لاس نيول، په نيكيو امر كول او د بديو نه خلك منع كول، د يو بل سره كومك او په هغه كې تيزي وركول ، بلكې هر هغه څه ته چې انسان په خپل ژوند كې ضرورت لري او شرعاً، فطرتاً او عقلاً د انسان په ګټه وي په هغه باندې يې امر كړی او د هر هغه څه نه چې شرعاً، فطرتاً او عقلاً د انسان په ضرر وي منع يې فرمايلي ده ، په همدې وجه الله عزوجل د مؤمن د انفاق لپاره هم مختلفي دروازې ، لارې او بخشونه ښودلي ترڅو د مسلمانانو په هر حالت كې لاسنوی وشي ، مخكې له دې چې د انفاق مختلفي لارې او بخشونه ذكر كړو بايد په ياد ولرو چې په يو بخش كې د مسلمانانو انفاق منحصر كول يا د خپلې فائدې له وجې عامو مسلمانانو ته يو مشخص بخش په ګوته كول او په نورو بخشونو د دين كې يې د انفاق څخه منع كول او بندول ظلم او ناروا ده ، له همدې وجې قران او سنت كې د انفاق لپاره مختلف بخشونه مشخص شوي ترڅو د ټولو مسلمانانو اجتماعي او انفرادي ضرورتونه حل شي چې د هغې له جملې څخه:

### ١ـ الجهادُ في سبيل الله.

د انفاق لپاره يوه ستره او اهمه لار هغه جهاد في سبيل الله ده، چې پورته كتاب كې ځای پر ځای په هغه خبره وشوه چې جهاد يوه اجتماعي فريضه ده او د ټولو مسلمانانو مصالح ورسره تړلي او په همدې سره د دين ، نفسونو، عزتونو ، مالونو او د مسلمانانو د خاورې حفاظت تړلی دی، نو ځكه دې بخش كې خپل مال لګول ترټولو اهم او افضل دي ، چې دلايل يې پورته ذكر شو چې بيا يې اعاده نكوو.

### ٢ـ الدعوةُ إلى الله تعالى:

دويمه لار او بخش د انفاق لپاره د دعوت لار او بخش دی چې انسان خپل مال د دين په دعوت كې استعمال كړي ، كه هغه د حق پرسته داعيانو او علماؤ په تايد او ملاتړ كې وي ، كه هغه د اسلامي كتابونو ، مجلو وغيره په چاپ او نشر كې وي ، او كه هغه نور دنيوی اسباب برابرول وي ترڅو د الله دين ترخلكو ورسيږي.

خديجه رضي الله عنها هغه زنانه وه چې خپل مال يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د اسلامي دعوت په خدمت كې تر ټولو مخكې استعمال كړ.

همدارنګه د ابوبكر صديق رضي الله عنه واقعات ذكر شول چې ابتداء د اسلام كې چې مكه كې رسول الله صلى الله عليه وسلم دعوت كاوه ، خلك يې د الله توحيد ته رابلل او د شرك څخه يې منعه كول ، ابوبكر صديق رضي الله عنه يې په خدمت كې خپل مال لګاوه.

### ٣ـ كفالة المُهاجرين:

دريم د هغه لارو څخه چې بايد مؤمن پكې انفاق او خرچ وكړي هغه د مهاجرينو كفالت دی ، هغه څوك چې د الله عزوجل لپاره يې خپل كور كلی او وطن پريښی وي او مهاجر شوی وي ، يقينًا چې دا د انفاق او خرچ لايق دي.

الله تعالى د هغه انصارو توصيف كړی چې مهاجرو صحابه كرامو ته يې د ځای ،خوراك او نورو اسبابو انتظام كړی و ، الله عزوجل يې په اړه وايي:

**وَالَّذِينَ تَبَوَّءُو الدَّارَ وَالْإِيمَٰنَ مِن قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِى صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّآ أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ**

[سُورَةُ الحَشر : 9]

ژباړه: (او دا مالونه د هغو خلکو (انصارو) لپاره هم دي) چې د دغو مهاجرينو له راتګ څخه مخکې يې ايمان راوړی، په دې کور (مدينه منوره) کښې استوګن ول. دوی له هغو خلکو سره مينه کوي چې دوی ته يې هجرت کړی دی؛ او هر څه چې هغو ته ورکړل شي، د هغو څه اړتيا قدري هم دوی پخپلو زړونو کښې نه احساسوي؛ او پر خپل ځان باندې نورو ته ترجيح ورکوي که څه هم پخپله محتاج وي. حقيقت دا دی، کوم خلک چې د خپل نفس د بخل(ياحرص) څخه وژغورل شول، همغوی بري موندونکې دي.

همدارنګه فرمايي:

**وَالَّذِينَ ءَامَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَٰهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ ءَاوَوا وَّنَصَرُوٓا أُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا لَّهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ** [سُورَةُ الأنفَال : 74]

ژباړه: کومو خلکو چې ايمان راوړ، او د الله په لار کښې يې هجرت وکړ او جهاد يې وکړ. او کومو خلکو چې پناه ورکړه او مرسته يې وکړه، هماغوی رښتيني مؤمنان دي. د هغو لپاره د ګناهونو بښنه او ډېره ښه روزي ده.

**۴ـ فكاك الأسير:**

د زندانيانو خلاصول.

بل بخش او لاره د انفاق في سبيل الله څخه د زندانيانو خلاصول دي چې مؤمن خپل مال د زندانيانو په خدمت او خلاصون کې ولګوي ، د اسير آزادول په مؤمنانو واجب دي ، ځکه د قتال او جهاد يو حکمت او د فرضيت وجه الله عزوجل د مستضعفينو او اسيرانو خلاصول بيان کړي دي ، نو کله چې د اسيرانو خلاصول په جهاد بالنفس سره واجب دي نو په جهاد بالمال سره خو په طريق اولی فرض دي

الله تعالی فرمايي:

**ومَا لَكُمْ لَا تُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ ٱلرِّجَالِ وَٱلنِّسَآءِ وَٱلْوِلْدَٰنِ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ ٱلظَّالِمِ أَهْلُهَا وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَٱجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا** [سورة النساء:75]

ژباړه: او څه شوي په تاسو باندې، چې جنګ نه کوئ د الله په لاره کې (د دين د ترقی لپاره) او په (خلاصولو) د ضعيفانو کې چې سړي، ښځې او هلکان دي هغه کسان چې دوی وايي: "اې زمونږ ربه ! وباسه موږ د دې کلي (مکې) څخه چې د هغې اوسيدونکي ظالمان دي او وګرځوه زمونږ لپاره د خپل طرف نه ولي (ساتونکې، دوست) او وګرځوه زمونږ لپاره د خپل طرف نه مدد ګار.

ابن العربي رحمه الله د دې آيت په اړه فرمايي:

**" قَالَ عُلَمَاؤُنَا: أَوْجَبَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ فِي هَذِهِ الْآيَةِ الْقِتَالَ؛ لِاسْتِنْقَاذِ الْأَسْرَى مِنْ يَدِ الْعَدُوِّ مَعَ مَا فِي الْقِتَالِ مِنْ تَلَفِ النَّفْسِ، فَكَانَ بَذْلُ الْمَالِ فِي فِدَائِهِمْ أَوْجَبَ، لِكَوْنِهِ دُونَ النَّفْسِ وَأَهْوَنَ مِنْهَا"**(أحكام القرآن 1/583)

ژباړه: زمونږ علماء وايي: الله سبحانه و تعالی په دې آيت کې قتال د بنديانو د آزادولو لپاره د دښمن څخه واجب کړی دی، سره د دينه چې په قتال کې ضياع د نفس شته، نو د مال مصرفول د دوی په خلاصون کې ډېر واجب دي ځکه چې په دې کې د نفس ضياع نشته او دا د هغه څخه آسانه ده.

همدارنګه امام قرطبي رحمه الله فرمايلي:

**"قَوْلُهُ تَعَالَى: (وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ) حَضٌّ عَلَى الْجِهَادِ. وَهُوَ يَتَضَمَّنُ تَخْلِيصَ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنْ أَيْدِي الْكَفَرَةِ الْمُشْرِكِينَ الَّذِينَ يَسُومُونَهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ، وَيَفْتِنُونَهُمْ عَنِ الدِّينِ، فَأَوْجَبَ تَعَالَى الْجِهَادَ لِإِعْلَاءِ كَلِمَتِهِ وَإِظْهَارِ دِينِهِ وَاسْتِنْقَاذِ الْمُؤْمِنِينَ الضُّعَفَاءِ مِنْ عِبَادِهِ، وَإِنْ كَانَ فِي ذَلِكَ تَلَفُ النُّفُوسِ. وَتَخْلِيصُ الْأُسَارَى وَاجِبٌ عَلَى جَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ إِمَّا بِالْقِتَالِ وَإِمَّا بِالْأَمْوَالِ، وَذَلِكَ أَوْجَبُ لِكَوْنِهَا دُونَ النُّفُوسِ إِذْ هِيَ أَهْوَنُ مِنْهَا. قَالَ مَالِكٌ: وَاجِبٌ عَلَى النَّاسِ أَنْ يَفْدُوا الْأُسَارَى بِجَمِيعِ أَمْوَالِهِمْ. وَهَذَا لَا خِلَافَ فِيهِ".** (تفسير القرطبي)



ژباړه: دا تيزي ورکول دي په جهاد باندې او دا آيت د مشرکانو د لاس څخه د ضعيفانو آزادولو ته هم شامليږي، هغه مشرکان چې دوی ته بد عذابونه رسوي او د دين څخه يې اړوي؛ نو الله سبحانه وتعالى د خپلې کلمې د پورته کولو لپاره او د دين د راښکاره کولو لپاره او د ضعيفه مؤمنانو د راخلاصولو لپاره جهاد فرض کړی دی، که څه هم په دې کې د نفسونو تلف پروت دی.

او د بنديانو آزادول د مسلمانانو په جماعت باندې د جنګ په ذريعه او يا د مال په ذريعه فرض دی، او د مال په واسطه ډېر زيات فرض دی ځکه چې په دې کې تلف د نفسونو نشته او د هغه څخه آسانه دی.

امام مالک رحمه الله فرمايلي: "په خلکو باندې واجبه ده چې په خپل ټول مال باندې د بنديانو فديه ورکړي". او په دې کې هيڅ خلاف نشته.

همدارنګه امام شوکاني رحمه الله ويلي : **"والمستضعفين مجرور عطفاً على الاسم الشريف، أي ما لكم لا تقاتلون في سبيل الله وسبيل المستضعفين حتى تخلصوهم من الأسر وتريحوهم مما هم فيه من الجهد...** (فتح القدير:1/562)

ژباړه: او (المستضعفين) دا مجرور دی د وجه د عطف څخه په اسم شريف باندې يعني څه شوي دي په تاسې باندې چې د الله په لاره کې او د کمزوري کړای شوو په لاره کې جهاد نه کوئ تر دې چې هغوی د بند څخه راخلاص کړئ او د هغه تکاليفو څخه چې هغوی په کې واقع دي (ګالي يې) آرامتيا ورکړئ.

همدارنګه امام قرطبي رحمه الله د (سورة البقره 85 )نمبر ايات په تفسير کې هم فرمايي: **قَالَ عُلَمَاؤُنَا: فِدَاءُ الْأُسَارَى وَاجِبٌ وَإِنْ لَمْ يَبْقَ دِرْهَمٌ وَاحِدٌ".** (تفسير قرطبي:2/22)

ژباړه: زمونږ علماء فرمايي: د بنديانو فديه ورکول فرض دي که څه هم يو درهم پاته نه شي.

د رسول الله صلى الله عليه په سنتو کې هم د بنديانو په خلاصولو امر راغلى او هغه عام دی که به جهاد بالنفس سره وي او که په جهاد بالمال سره وي ، امام المحدثين محمد بن اسماعيل البخاري رحمه الله د دې موضوع د اهميت د وجې باب ايښې دی چې **(بَابُ فَكَاكِ الأَسِيرِ)** باب دی به بيان د خلاصولو د بندي کې.

او بيا يې حديث نقل کړی:

**عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فُكُّوا العَانِيَ، يَعْنِي: الأَسِيرَ، وَأَطْعِمُوا الجَائِعَ، وَعُودُوا المَرِيضَ"** (صحيح البخاري)

ژباړه: د ابو موسى الأشعري رضي الله عنه څخه روايت دی هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: "بندي خلاص کړئ او وږي ته ډوډی ورکړئ او د مريض پوښتنه وکړئ". نو په پورته حديث کې رسول الله د بندي په آزادولو باندې امر کړی، او د نبي عليه السلام امر د وجوب لپاره وي چې کله بل طرف قرينه نه وي موجوده، معنى دا چې دا فرض دی په مسلمانانو باندې چې خپل بنديان آزاد کړي که هغه د جنګ په ذريعه وي او که د فديې او مال په ذريعه او که د تبادلې په واسطه، او که مسلمانانو يو طاقت هم نه درلوده بيا به دعاګانې کوي.

همدارنګه بل روايت کې نقل دي:

**عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قُلْتُ لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ مِنَ الوَحْيِ إِلَّا مَا فِي كِتَابِ اللَّهِ؟ قَالَ: "لاَ وَالَّذِي فَلَقَ الحَبَّةَ، وَبَرَأَ النَّسَمَةَ، مَا أَعْلَمُهُ إِلَّا فَهْمًا يُعْطِيهِ اللَّهُ رَجُلًا فِي القُرْآنِ، وَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ»، قُلْتُ: وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ؟ قَالَ: «العَقْلُ، وَفَكَاكُ الأَسِيرِ، وَأَنْ لاَ يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ".** (صحيح البخاري)

ژباړه: د ابو جحيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چې ما علي رضي الله عنه ته ووويل، آيا ستاسو سره سېوا د

هغه شخه چې د الله تعالى په کتاب کې دي، د وحې شخه شته؟ هغه وفرمايل: نه، قسم په هغه الله باندې چې دانه يې چولې ده او مخلوقات يې پيدا کړي دي مګر هغه پوهه چې الله تعالى چا ته په قرآن کې ورکړي وي او سيوا د هغه شخه چې په دې پاڼه کې دي. ما وويل: په دې کې شه دي؟ ويې فرمايل: د ديت بيان، او د بندي آزادول، او دا چې مسلمان به د کافر په بدل کې نه وژل کيږي.

ابن حجر رحمه الله فرمايي: والمعنى أن فيها حكم تخليص الأسير من يد العدو والترغيب في ذلك.(فتح الباري:1/205) ژباړه: او د دې معنى دا ده چې په دې کې د بندي د آزادولو حکم دی د دښمن شخه او په دې باندې ترغيب ورکول دي.

شيخ الإسلام ابن تيمية رحمه الله هم فرمايلي: " **أَنَّ فِكَاكَ الْأَسَارَى مِنْ أَعْظَمِ الْوَاجِبَاتِ وَبَذْلَ الْمَالِ الْمَوْقُوفِ وَغَيْرِهِ فِي ذَلِكَ مِنْ أَعْظَمِ الْقُرُبَاتِ**"مجموع الفتاوى :28/642)

ژباړه: يقينًا د بنديانو خلاصول يو له لويو فريضو شخه دی، او د پيسو وغيره مصرفول په دی کې چې وقف شوي وي( الله ته د نزديکت) د لويو وسيلو شخه دي.

**٥ـ بناءُ المساجد والمدارسِ.**

**د مساجدو او مدارسو جوړول،**

مساجد د مسلمانانو ديني، تربيتي ، عسکري مراکز او عبادت خانې دي ، او جوړولو ته يې الله عزوجل ترغيبات ورکړي او دا يې د مؤمنانو صفت او عمل ذکر کړی.

الله تعالى فرمايي:

**إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسْجِدَ اللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْءاخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَوٰةَ وَءَاتَى الزَّكَوٰةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ فَعَسَىٰٓ أُولَٰٓئِكَ أَن يَكُونُوا مِنَ الْمُهْتَدِينَ** [سُورَةُ التَّوبَة : 18]

ژباړه: د الله د مسجدونو ابادونکي خو هماغه خلک کيدای شي چې په الله او د اخرت په ورځ ايمان لري، او لمونځ قائم کړي، زکات ورکړي او له الله پرته له بل هيچا شخه نه ويريږي. له هماغوی شخه دا توقع ده، چې په سمه لاره به لاړ شي.

نو پورته ايات کې د مسجد ابادول د مؤمنانو صفت ذکر شوی او هغه ابادول عام دي که په بدن سره وي او يا هم په مال سره ابادول وي.

همدارنګه حديث کې هم راغي چې د بني نجارو شخه رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغوی قيمتي باغ د مسجد لپاره طلب کړ چې خرڅ يې کړي خو هغوی خپل باغ خرڅ نه بلکې د الله عزوجل د رضا په خاطر صدقه کړ!

**عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ، قَالَ : " أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ ، فَقَالَ : يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُونِي بِحَائِطِكُمْ هَذَا ، قَالُوا : لَا ، وَاللَّهِ لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهُ إِلَّا إِلَى اللَّهِ"** (صحيح البخاري)

ژباړه: له انس رضي الله عنه شخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د مسجد د جوړولو امر وکړ او ويې فرمايل: ای بني نجار ستاسې دا باغ په پيسو ماته راکړئ ، هغوی وويل: نه، په الله قسم، موږ د دې قيمت نه غواړو مګر الله ته وقف دی.

همدارنګه ديني او شرعي مدارس هم د اسلامي تعليماتو مراکز دي چې جوړول او پکې خپل مال مصرفول انسان ته لوي خيرونه نصيب کوي.

**٦ـ كفالة الأيتامُ والأرامل:**

**د يتيمانو او کونډو کفالت کول ،**

کونډو او يتيمانو باندې خپل مال خرڅ کول ، د هغوی پالنه کول ، يقينًا يو بهترين عمل دی چې قران او سنت يې لوي شان بيان کړی او سبب د جنت يې ګرځولی.

حديث کې راغي:

**عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " كَافِلُ الْيَتِيمِ لَهُ أَوْ لِغَيْرِهِ أَنَا وَهُوَ كَهَاتَيْنِ فِي الْجَنَّةِ " ، وَأَشَارَ مَالِكٌ بِالسَّبَّابَةِ وَ ا لْوُ سْطَى .** ( صحيح مسلم)

ژباړه: له ابوهريره رضي الله عنه شخه روايت دی چې رسول الله



صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د یتیم پالنه کونکی (دا یتیم) که د هغه (قریب)وي او که د بل چا وي، زه او هغه به په جنت کې د دې دوه ګوتو پشان یو ، او امام مالک په خپله شهادت او منځنی ګوتو اشاره وکړه.

**٧ـ إطعامُ الطعام للمساكين:**

فقیرانو او مسکینانو باندی خرچ کول هم د انفاق له بخشونو او لارو څخه دي چې قران او سنت بار بار ورته ترغیبات ورکړي.

الله تعالی فرمایي:

**وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا (8) إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا** [سُورَة الدَّهر: 9]

ژباړه: او (دا مؤمنان) د الله په مینه کښي مسکین، یتیم او بندي ته خواړه ورکوي (او هغو ته وایي چې) موږ تاسې ته یوازي د الله په خاطر خواړه درکوو،موږ ستاسې څخه نه څه بدله غواړو، نه مننه؛

همدارنګه فرمایي:

**يَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلْ مَا أَنفَقْتُم مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ** [سُورَةُ البَقَرَة : 215]

ژباړه: خلك ستا څخه پوښتنه کوي: "موږ څه مصرف کړو؟" - ځواب ورکړه: "کوم مال چې تاسې لګوئ، پر خپل مور او پلار، خپلوانو، یتیمانو، مسکینانو او مسافرو باندي يې ولګوئ او تاسې چې هره ښېګڼه کوئ، الله پرې خبریږي."

**٨ـ إفطار الصائمين:**

روژه دارو ته(افطار) روژه ماتي ورکول هم د انفاق له لارو او بخشونو څخه یو بخش دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ترغیبات ورکړي.

**عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَنْقُصُ مِنْ أَجْرِ الصَّائِمِ شَيْئًا "** (جامع الترمذي: رقم 734)

ژباړه: له زید بن خالد الجهني رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک چې روژه دار ته روژه ماتي ورکړي، ده لپاره به هم د هغه په شان ثواب وي، خو د روژه دار له اجر څخه به څه کم نشي .

فائده: پورته هغه لارې دي چې مؤمن انسان کولی شي چې پدې بخشونو کې خپل مال ولګوي خو هیره دي نه وي چې دین اسلام کې د اعمالو مراتب معلوم دی چې بعضي وخت به اهم په غیر اهم ، اجتماعي په انفرادي ، او داسی نورو مقدم کولی شي ، چې د دې قاعدې لپاره شریعت کې ډیر مثالونه او دلایل شته.

یو د هغې څخه دا چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم معاذ رضي الله عنه یمن ته لیږي نو ورته وایي:

**إِنَّكَ تَقْدَمُ عَلَى قَوْمٍ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ ، فَلْيَكُنْ أَوَّلَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَى أَنْ يُوَحِّدُوا اللَّهَ تَعَالَى فَإِذَا عَرَفُوا ذَلِكَ ، فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي يَوْمِهِمْ وَ لَيْلَتِهِمْ** . . . . . ( صحيح البخاري)

ژباړه: ته د اهل کتابو څخه یو قوم ته ځې ، نو لومړی هغه چې تاسې دعوت کوئ دوی دا دی چې دوی د الله توحید ومني ، که دوی پدې پوه شي، نو بیا دوی خبر کړه چې په دوی الله تعالی په شپه او ورځ کې پنځه لمونځونه فرض کړي دي...

نو دا حدیث دلیل دی چې توحید مقدم دی په نورو اعمالو ...

نو همدارنګه په صدقاتو او انفاق في سبیل الله کې به هم أهم او ضروري‌په نورو مخکې کولای شي ، د مثال په ډول کفار یوه اسلامي خاوره اشغال کړي او په مسلمانانو ظلمونه کوي نو په داسې وخت کې پکار دا ده چې مؤمنان خپل صدقات او مالونه په قتال او جهاد او د دښمنانو په په دفع کولو کې ولګوي ، نه دا چې پداسی وخت کې انسان خپل مال په حج او عمره ، او نور مروجه خیراتونو

باندي ولګوي ،ځکه چې دښمن يې په سر ولاړ دی د ده دين او عزت برابرادوي، نو پدې اول لازم او ضروري دا ده چې دغه دښمن د ځان څخه دفعه کړي بيا نورو صدقاتو کې مال مصرف کړي.

## د اسلامي نظام د اقتصاد منابع:

دا چې مخکې هم اشاره وشوه چې اقتصاد د مسلمانانو په دولت کې او د کفارو سره په جهادونو او مبارزو کې ډير لوړ حيثيت لري او اقتصاد ته (عصب الحياة وقوامها) د زندګۍ عصب او د ژوند لپاره ستن او اساسي سبب ويل کيږي ، ځکه چې د رعيت حقوق ، د اسلامي نظام د ساتني او د دښمنانو پر وړاندې د جهاد لپاره اسباب او وسائل برابرول، اسلحې او تجهيزات امده کول، د اسلامي فوج او لښکر روزل او ساتل دا ټول اقتصاد ته ضرورت لري، نو په همدې اساس مجاهدين به د خپل نظام اقتصاد قوي کوي ، هغه منابع به پکار اچوي چې له کومو څخه د اسلامي نظام اقتصاد پياوړی کيږي.

که د رسول الله صلی الله عليه وسلم نبوي دولت او د هغه بناء انسان مطالعه کړي مالي او اقتصادي بخش ته رسول الله صلی الله عليه وسلم پوره توجو کوله، حتی د مدينې څخه مخکې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته داسې قضيې مخ ته راغلې چې بايد رسول الله صلی الله عليه وسلم يو اقتصادي نظام او اداره ولري مکه کې به بعضې غلامان وو، چې ايمان به يې راوړلو نو کفارو به وربانـدې ظلمونه کول، هغوی ته به يې تعذيب او شکنجه ورکوله، رسول الله صلی الله عليه وسلم به دا خوښه ګڼله چې دا غلامان د پيسو مقابل کې واخلي او ازاد يې کړي، لکه د بلال رضی الله عنه واقعه راغله چې د مشرکانو تعذيبونو کې يې ورځې شپې تيرولې د تاريخ او سيرت کتابونو ليکلي:

قال عطاء الخراساني: **"كنت عند ابن المسيب فذكر بلالا، فقال: كان شحيحا على دينه، وكان يعذب في الله، فلقي النبي -صلى الله عليه وسلم-، فقال: لو كان عندنا شيء، ابتعنا بلالا، فلقي أبو بكر العباس، فقال اشتر لي بلالا، فاشتراه العباس، وبعث به إلى أبي بكر، فأعتقه"** [سير أعلام النبلاء جـ 3/213 صـ / ومعرفة الصحابة]

ژباړه: عطاء خراساني وايي زه د ابن المسيب سره وم چې بلال رضي الله عنه يې ذکر وکړ نو ويې ويل: هغه ډير په دين حريص و او د الله په خاطر ډير تعذيب کړای شو ، نبي صلی الله عليه وسلم ورسره مخامخ شو هغه وويل: کاش مونږ سره څه شی وای چې بلال مو اخيستی وای ، پس ابوبکر د عباس رضي الله عنه سره مخامخ شو نو (ورته) ويې ويل: بلال ما لپاره واخله ، عباس رضي الله عنه هغه واخيسته او ابو بکر صديق رضي الله عنه ته يې وليږه پس هغه ازاد کړ.

نو دې روايت نه معلوميږي چې حتی مکه کې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته داسې قضيې مختـه راغلې وې چې هلته بايد قوي اقتصاد ولري، بل دا چې اسلامي نظام ته بنديان، کونډې او يتيمان ورپه غاړه وي دا اقتصاد غواړي، د دښمنانو سره دښمني او جنګونه اقتصاد غواړي ، نو په همدې اساس چې کله مدينې ته رسول الله صلی الله عليه وسلم هجرت وکړ بيا يې د خپل اقتصاد لپاره بنيادونه کيښودل، مختلف واردات به نظام ته راتلل او هر يو لپاره يې منظمه اداره او تشکيل برابر کړ چې د هغی له جملې نه:

**۱ـ غنائم:** د کفارو څخه په زور او جنګ سره مالونه اخيستل ، لکه رسول الله صلی الله عليه وسلم چې اراده کړې وه چې د ابو سفيان قافله ووهي او خپل اقتصاد وربانـدې جوړ کړي او د دښمن اقتصاد ته ګوزار ورکړي ، هماغه و چې قافله بچ شوه خو الله عزوجل



په بدر کې د جنګ څخه وروسته صحابه کرامو ته غنیمتونه ورکړل ، رسول الله صلی الله علیه وسلم دې غنائمو د ساتلو او تقسیم لپاره منظم تشکل جوړ کړ نبي صلّی الله علیه وسلم "عبد الله بن کعب" د غنیمتونو مسئول مقرر کړ مخکې د تقسیم څخه او په بندیانو یې "شقران" د رسول الله صلی الله غلام( مسول ) مقرر کړ او په خمس د مسلمانانو یې "محمیةَ بن جزء الزبیديّ " مقرر کړ ، دا دری هغه کسان وو، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مالي اداره کې اول ځل لپاره مقرر کړل .

نو له دې لاري به هم د عامو مسلمانانو اقتصاد قوي کیده ځکه چې په غنیمت کې د مجاهدینو لپاره ځانګړې حصې وې ، او هم به د نظام اقتصاد قوي کیده او بیت المال ته به مال جمعه کیده ځکه چې غنیمت کې خُمس ـ یعني پنځمه حصه ـ د بیت المال وي. نو د غنیمت اموال یو له هغه مالي منابعو څخه دي چې په اسلام کې تر ټولو پاک مال ګڼل کیږي ،

الله تعالی فرمایي:

**وَاعْلَمُوٓا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُۥ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِى الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَٰمَىٰ وَالْمَسَٰكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ إِن كُنتُمْ ءَامَنتُم بِاللَّهِ وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ** [سُورَةُ الأنفَال : 41]

ژباړه: او تاسې ته دې معلومه وي چې د غنیمت څه مال چې تاسې په لاس راوړی دی، د هغه پنځمه برخه د الله، د هغه د پیغمبر، د خپلو خپلوانو، د یتیمانو، د مسکینانو او د مسافرانو لپاره ده. که تاسې پر الله او پر هغه شي ایمان راوړی وي چې د فیصلې په ورځ (یعني د دواړو لښکرو د مخامخ کېدو په ورځ) موږ پر خپل بنده نازل کړی وو (نو دا برخه په خوښی سره ادا کړئ). الله په هر څه قادر دی.

حدیث کې هم راځي چې د مسلمانانو رزق الله تعالی په جهادونو او غنیمتونو کې ایښی دی:

**عَنِ ابْنِ عُمَرَ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " بُعِثْتُ بِالسَّيْفِ حَتَّى يُعْبَدَ اللَّهُ لَا شَرِيكَ لَهُ ، وَجُعِلَ رِزْقِي تَحْتَ ظِلِّ رُمْحِي ، وَجُعِلَ الذِّلَّةُ وَالصَّغَارُ عَلَى مَنْ خَالَفَ أَمْرِي ... "** (مسندأحمد: رقم 4969)

ژباړه: له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه په توري سره رالیږل شوی یم تر څو د الله تعالی عبادت وشي چې هیڅ شریک نه لري ، او زما رزق زما د نیزې تر سیوري لاندې کېښودل شي. او ذلت او سپکوالی پر هغه چا ګرځول شوی دی چې زما له امر څخه سرغړونه وکړي.

**۲ـ زکاتونه :**

د زکات د اموالو لپاره هم په نبوي دولت کې همداسې منظم تشکیل او اداره وه، رسول الله صلی الله علیه وسلم دې باب کې هم مؤمنانو ته احکام ، اصول او ضوابط بیان کړل چې د سرو زرو ، سپین زر ، درهم یا دینار څخه په خپل معلوم مقدار زکات اخیستل کیږي او د حیواناتو څخه خپل مقدار او د فصلونو څخه به هم د شریعت د قوانینو مطابق ځانګړې حصې اخیستل کیږي، د دې د راټولولو لپاره به یې خپل عُمال او کار کونکي مقررول، د تقسیم لپاره یې هم ځانګړي اصول بیان کړل ، د مستحقینو او په صحې طریقه حقدارو ته رسولو لپاره یې هم خلک مقررول.

نو د اسلامي نظام لپاره د مالي منابعو څخه د زکاتونو راټول او بیرته په مستحقینو تقسمول هم یوه لویه منبع ده چې قرآن کریم کې الله عزوجل د دې خبرو ذکر کړی:

الله تعالی فرمایي:

**خُذْ مِنْ أَمْوَٰلِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ** [سُورَةُ التَّوبَة : 103]

ژباړه: [اې پیغمبره] ته د هغوی له مالونو څخه د صدقې (زکات) په اخیستلو سره هغوی پاک

کـړه او (د نېکـۍ پـه لاره کښـي) هغـوی وهڅـوه. او د هغـو پـه حـق کښـي د رحمـت دُعـا وکـړه، ځکـه چـې سـتا دُعـا بـه د هغـو لپـاره د ډاډينـي وسـيله وي. الله هـر څـه اوري او پـه هـر څـه پوهيـږي.

همدارنگـه د مصارفـو بـاره کـې يـې فرمايـې:

**إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسَٰكِينِ وَالْعَٰمِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِى الرِّقَابِ وَالْغَٰرِمِينَ وَفِى سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ**

[سُـورَةُ التَّوبَـة : 60]

ژبـاړه: دا صدقې(زکاتونـه) خـو پـه اصـل کښـي د فقيرانـو او مسـکينانو لپـاره دي، او د هغـو خلکـو لپـاره دي چـې د صدقـو د چـارو ماموريـن وي، او د هغـو لپـاره چـې زړونـه يـې پـه لاس راوړل مقصـد وي. دغـه راز دا د غاړو(غلامانـو) د ازادولـو او د پـوروړو د مرسـتې لپـاره د الله پـه لار کښـي او پـه مسـافر پالنـه کښـي د اسـتعمالولو لپـاره دي. د الله لـه لـوري يـوه فريضـه ده؛ او الله پـه هـر څـه پوهېدونـکی او حکمـت والا دی.

## ۳ـ جزيه:

پـه نبـوي دولـت کـې بـه پـه کفـارو جزيـه مقرريـده او لـه دې طريقـې بـه هـم رسـول اللـه صلـی اللـه عليـه وسـلم خپـل اقتصـاد قـوي کاوه ، جزيـه د اهـل کتابـو او د هغـه چـا څخـه چـې د دوئ سره مشـابه وي لکـه مجـوس د هغـوئ څخـه بـه اخيسـتل کيـږي ، عـام مشرکيـن او مرتديـن لکـه شـيعه روافـض او داسـې نـور ، د هغـوی څخـه جزيـه نـشي اخيسـتل کيـدلای ، بلکـې هغـوئ بـه يـا اسـلام راوړي او کـه نـه نـو وژل کيـږي بـه.

رسـول اللـه صلـی اللـه عليـه وسـلم او خلفـاؤ بـه د جزيـې راټولولـو لپـاره هـم خپـل عُـمال مقـررول او د هـر عاقـل ، بالـغ ، نارينـه پـر سر بـه يـې يـو دينـار مقـرراوه او يـا د دې معـادل جامـې وغيـره ، لکـه حديـث کـې نقـل دي:

**عـن معـاذ بـن جبـل -رضي اللـه عنـه- قـال: أنَّ رسـولَ اللّـهِ صـلَّى اللّـهُ عليـهِ وسـلَّمَ بعثَـهُ إلى اليمـنِ وأمـرَهُ أن يأخـذَ مـن كلِّ حـالمٍ دينـارًا أو عدلَـهُ معافـرَ،**

[رواه النسـائي]

ژبـاړه: معـاذ بـن جبـل رضي اللـه عنـه فرمايـې: يقينـًا رسـول اللـه صلـی اللـه عليـه وسـلم هغـه يمـن تـه وليـږه او د جزيـې پـه راټولولـو يـې ورتـه امـر وکـړ، چـې د هـر بالـغ شـخص څخـه يـو دينـار واخـلي او يـا د هغـه معـادل (يمنـی) جامـې تـري واخـلي.

نـو لـه دې لارې هـم اسـلامي نظـام تـه زيـات عوائـد راځـي چـې د مسـلمانانو او اسـلامي نظـام اقتصـاد وربانـدې قـوي کيـږي.

## ۴ـ زراعت :

پـه اسـلامي نظـام کـې زراعـت هـم يـوه لويـه منبـع د اقتصـاد ده چـې رسـول اللـه پـه دې بـاب کـې هـم پـوره توجـو کـړې وه، چـې پـدې کـې خلکـو تـه د ځمکـو د ابادولـو اجـازه ورکـول ، ځمکـې خلکـو تـه مشـخص کـول او جـدا کـول ، د فصـل ځمکـه خلکـو تـه ورکـول ترڅـو حاصـلات يـې اسـلامي نظـام تـه جمعـه شي لکـه رسـول اللـه صلـی اللـه عليـه وسـلم چـې د خيبـر څخـه بعضـې ځمکـه خـاص کـړه چـې د هغـې څخـه بـه کـوم حاصـلات راتلـل هغـه بـه د وفدونـو او نـور د مدينـې او د اسـلامي نظـام پـه حوائجـو کـې مصرفيـدل.

حديث کې راځي:

**عَـنِ ابْـنِ عُمَـرَ رَضِيَ اللَّـهُ عَنْهُـمَا ، " أَنَّ رَسُـولَ اللَّـهِ صَـلَّى اللَّـهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ أَعْطَـى خَيْـبَرَ الْيَهُـودَ عَـلَى أَنْ يَعْمَلُوهَـا وَيَزْرَعُوهَـا، وَلَهُـمْ شَـطْرُ مَـا خَـرَجَ مِنْهَـا "**

(صحيـح البخـاري)

ژبـاړه: لـه ابـن عمـر رضي اللـه عنهـما څخـه روايـت دی، چـې رسـول اللـه صلـی اللـه عليـه وسـلم يهودانـو تـه د خيبر(ځمکـه ) ورکـړه ، چـې دوی بـه د هغـې اصـلاح کـوي او کَـرِي بـه يـې پـه نيمـه برخـه د هغـه څـه چـې حاصـل کـوي.

بل روايت کې راځي:

**عَـنْ سَـهْلِ بْـنِ أَبِي حَثْمَـةَ ، قَـالَ : " قَسَـمَ رَسُـولُ اللَّـهِ صَـلَّى اللَّـهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ خَيْـبَرَ نِصْفَـيْنِ ، نِصْفًـا لِنَوَائِبِـهِ وَحَاجَتِـهِ ، وَنِصْفًـا بَـيْنَ الْمُسْـلِمِينَ .... "** (سـنن ابي داود:رقـم 2619)

ژبـاړه: لـه سـهل بـن ابي حثمـه څخـه روايـت دی هغـه وايـې: رسـول



الله صلی الله علیه وسلم خیبر په دوو برخو وویشه، نیم یې د مصائبو او اړتیاوو له لپاره(خاص کړ) او نیم یې د مسلمانانو په منځ کې وویشه....

### ٥ـ تجارت:

په اسلامي نظام کې باید تجارت هم وي ترڅو د اسلامي نظام اقتصاد له دې لارې هم قوي شي ، تجارت هغه عمل دی چې اسلام ترغیبات ورکړي باید مسلمان محنت وکړي ، زیار وباسي او د خپل اهل عیال ترڅنګ باید اسلامي معاشره او ګاونډ او د خپل نظام د اقتصاد په تقویت کې سهیم شي د همدې لپاره رسول الله صلی الله علیه وسلم نوی بازار جوړ کړ چې د یهودو څخه مستقل وو بیا یې د تجارت او معاملاتو او اخیستلو خرڅولو لپاره خاص قوانین، او اصول او ضوابط بیان کړل چې د احادیثو کتابونو کې ورباندې بابونه تړل شوي.

مثلاً تجارت کې صداقت ، دوکه نه کول ، بیکاره او خراب مالونو څخه ځان ساتل ، خبائث نه خرڅول ، همدارنګه د پیمانې او احتکار او نور مسائل هغه څه دي چې پدې دلالت کوي، چې په نبوي دولت کې تجارت ته ځای ورکړل شوی و.

### ٦ـ صنعت:

د تجارت ترڅنګ باید اسلامي نظام صنعت ته هم خاص پاملرنه وکړي او له دې لارې خپل نظام او اقتصاد ته وده ورکړي ، پدې کې دوه فائدې وي یو دا چې د کفارو او کفري ممالکو څخه استغناء حاصلیږي او ورسره د خپل رعیت اسانتیاوې او اقتصاد قوي کوي...

همدا وجه وه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې د هغه وخت مناسب ، اسلحې جوړیدې چې د تورو ، غشو ، نیزو او زغرو ترڅنګ توپونه هم جوړیدل چې هغه وخت یې ورته منجنیق ویل ، د دې ترڅنګ د ژوند په نورو برخو کې هم پوره کار کیده لکه رختونه جوړیدل ، له خرمنو مختلف لوښي او لباسونه جوړیدل او داسې نور ...

### ٧ـ رِکاز او معادن (طبعي زیرمې):

رکاز هغه خزانو ته ویلی شي چې د جاهلیت والا به دفن کولې او معدنونه او طبعي زیرمې هم اسلامي نظام د اقتصادي منابعو څخه دي چې باید مسلمانان له دې لاري هم د خپل نظام اقتصاد قوي کړي ، همدا وجه ده دین اسلام پدې باب کې هم څرګندونې کړي چې د احادیثو په کتابونو کې د رِکاز او معدنونو خپل احکام ذکر شوي.

فائده: پورته بحث څخه معلومه شوه چې اسلام یواځې د عبادت نوم ندی بلکې په اسلام کې د سیاست ترڅنګ اقتصاد ، تجارت ، معاملات او نور مختلف اړخونه شته.

### د باطلو تنظیمونو مالي منابع:

نن د اسلام په نامه ډیری تنظیمونه د مسلمانانو ترمنځ وجود لري او خپلو تنظیمونو ته هم د اسلام نسبت کوي ،خو هر بخش یې بیا د اسلام څخه په مخالف لور روان دی چې په مختلو رسایلو کې په هغه خبره شوې ، دلته یواځې په لنډه توګه د نن زمانې د باطلو تنظیمونو مالي سرچینو ته اشاره کوو.

د طالبانو تش په نامه اسلامي امارت هم یو له هغه تنظمونو څخه دی چې د ایمان د نواقضو ترڅنګ یې په مالي برخه کې هم د اسلامي منابعو پر ځای د کفارو ګدایئ او سوال ته ناست دی!

او ترڅنګ یې سودي او حرام منابع د خپل نظام او افرادو لپاره انتخاب کړي.

دا ځکه ویلای شو چې جهاد دوی تعطیل کړی چې د هغې له لاري د کفارو څخه غنیمتونه حاصل کړي چې یو له پاکو او حلالو رزقونو څخه شمیرل کیږي نو ځکه مجبور شول چې د امریکا ډالري کڅوړو او راشن ته کیني!

افسوس دا دی چې امریکا په عین وخت کې د مسلمانانو سره په مختلفو ملکونو کې په جنګ کې شکیل ده هره ورځ د مسلمانانو شځې

او بچې بمباروي خو دا بې ضميره بيا د همدې کفارو راشن ته ناست دي او ډالري کڅوړو باندې يې عيش او عشرت برابر کړی!!!

همدارنګه طالب او نورو مرتدو تنظيمونو نن د جزي احکام معطل کړي ، نو خامخا به بيا کفارو ته محتاج کيږي.

همدارنګه د حلالو تجارتونو پر ځای يې د سودي بانکونو او سودي معاملاتو دروازې خلاصې کړي ، حال دا چې سود هغه عظيم جرم دی چې قرآن او سنت کې يې په حرمت ډير شکاره نصوص نازل شوي او سود خورو ته الله عزوجل د خپل جنګ اعلان کړی او فرمايي: **فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ** [سُورَةُ البَقَرَة : 279]

ژباړه: خو که تاسې داسې و نه کړل د (سود) څخه منعه نه شوئ نو خبر اوسئ چې د الله او د هغه د پیغمبر له خوا ستاسې پر خلاف د جګړې اعلان دی. که اوس هم توبه وباسئ (سود پريږدئ)، نو تاسې د خپلې پانګې اخيستلو حقدار ياست، مه تاسې تيری کوئ او نه به پر تاسې تيری وشي.

امام ابن کثير رحمه الله په خپل تفسير کې د دې ايات د لاندې د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما قول او تفسير نقل کړی هغه وايي: ، عن ابن عباس : **( فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ) فَمَنْ كَانَ مُقِيمًا عَلَى الرِّبَا لَا يَنْزِعُ عَنْهُ فَحَقٌّ عَلَى إِمَامِ الْمُسْلِمِينَ أَنْ يَسْتَتِيبَهُ ، فَإِنْ نَزَعَ وَإِلَّا ضَرَبَ عُنُقَهُ.**

ژباړه: د ابن عباس رضي الله عنهما څخه نقل دي د دې ايات باره کې **( فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ)** به يې ويل : څوک چې په سود کلک ولاړ وي او ورڅخه نه لري کيږي نو د مسلمانانو په خليفه لازم دي چې طلب د توبې ورڅخه وکړي که له سود څخه منعه شو خه خبره او که منعه نشو نو څټ به يې په توره وهي.

دارنګه د دې باطلو تنظيمونو ډيری مالي برخه د نشه يي موادو لکه تارياک ، چرس ، پوډر وغيره څخه توليديږي لکه څرنګه مو چې د امارت په شل کلنه جګړه کې وليدل چې د تارياکو او چرسو څخه به يې زکاتونه او عشرونه اخيستل او يا به يې هم مشرانو د پوډرو کارخانې درلودې او خارجي ممالکو ته به يې قاچاق کول او په همدغه حرامو مالونو باندې يې د جنګ ماشين چالان ساتلی و. حال دا چې دا اتفاقي حرام مالونه دي ، حديث کې راځي:

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ، قَالَ : رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا عِنْدَ الرُّكْنِ ، قَالَ : فَرَفَعَ بَصَرَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَضَحِكَ ، فَقَالَ : " لَعَنَ اللَّهُ الْيَهُودَ ثَلَاثًا : إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيْهِمُ الشُّحُومَ فَبَاعُوهَا ، وَأَكَلُوا أَثْمَانَهَا ، وَإِنَّ اللَّهَ إِذَا حَرَّمَ عَلَى قَوْمٍ أَكْلَ شَيْءٍ حَرَّمَ عَلَيْهِمْ ثَمَنَهُ "** (سنن ابي داود: رقم 3029)

ژباړه: له ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی چې ما رسول الله صلی الله عليه وسلم وليد چې حجر اسود سره ناست و، هغه وايي: بيا يې خپل نظر اسمان ته پورته کړ ، ويې خندل ، او ويې ويل: په يهودانو دې الله لعنت وکړي درې ځله (يې دا خبر وکړه) : يقيناً الله په دوی باندې چربي حرامه کړی وه ، نو دوی به ويلورله او د هغې قيمت به يې خوړ، او يقيناً الله چې کله په يو قوم باندې د يو شيز خوړل حرام کړي ، نو د هغه شي قيمت (پيسې) هم وربانديې حرامې کړي.

همدارنګه بل د دې تنظيمونو د حرامو منابعو څخه ټکسونه ، ګمرکونه او ماليات دي چې خپل نظام له همدې لاري اکمالوي حال دا چې دا هم حرامه منبع ده.

حديث د صحيح مسلم کې نقل دي ، کله چې په غامديه زنانه رجم قائم شو نو بعضي خلکو ورته بد رد وويل نو نبي صلی الله عليه وسلم وفرمايل: **فَوَالَّذِي**



**نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا صَاحِبُ مَكْسٍ لَغُفِرَ لَهُ**"(صحيح مسلم: رقم الحديث 3214)

ژباړه: قسم په هغه ذات چې زما روح يې په لاس کې دی ، دې خامخا داسې توبه وويسته چې که چېرته د ټکس والا يې وباسي نو هم ضرور به ورته بخښنه شوې وای.

امام نووي رحمه الله د دې حديث په شرح کې وايي: **فِيهِ أَنَّ الْمَكْسَ مِنْ أَقْبَحِ الْمَعَاصِي وَالذُّنُوبِ الْمُوبِقَاتِ وَذَلِكَ لِكَثْرَةِ مُطَالَبَاتِ النَّاسِ لَهُ وَظَلَامَاتِهِمْ عِنْدَهُ وَتَكَرُّرِ ذَلِكَ مِنْهُ وَ انْتِهَاكِهِ لِلنَّاسِ وَأَخْذِ أَمْوَالِهِمْ بِغَيْرِ حَقِّهَا وَصَرْفِهَا فِي غَيْرِ وَجْهِهَا.**

(شرح النووي على مسلم: ج11/203صـ)

ژباړه: په دې کې دليل دی چې ټکس (گمرک) اخيستل د بدترينو نافرمانيو او د هلاکوونکو گناهونو څخه دی او دا له دې امله چې په دې کې د خلکو څخه غوښتنې ډېرې وي او په ظلم اخستل کيږي او دا په تکرار سره رامنځته کيږي ددی د وجهي نه او د خلکو سپکاوی په کې وي او اخستل د دوي دمالونو دي په کې په ناحقه طريقه او مصرفول د هغې دي په ناحقه طريقه.

د ټکسونو او مالياتو په اړه د لا زيات تفصيل لپاره د العزائم خپرندويه اداري څخه مستقل خپور شوی کتاب (المدارک في تحريم المکوس والجمارک) مطالعه کړئ.

## د دښمن اقتصاد له منځه وړل :

**عزتمند مجاهدينو او مسلمانانو !**

بايد په ياد ولرو چې د خپل اقتصاد تر څنګ به مجاهدين د دښمنانو اقتصاد ته متوجه کيږي، د هغوی اقتصاد به له منځه وړي او خپل دښمن به په اقتصادي لحاظ کمزوری کوي لکه رسول الله صلی الله عليه وسلم چې د مکې والا د قافلې لپاره خاص عمليات وکړل ترڅو خپل اقتصاد برابر کړي او دښمن په اقتصادي لحاظ له پښو وغورځوي . ثمامة بن أثال رضي الله عنه چې کله اسلام راوړ هغه هم دا خبره قريشو ته وکړه چې: "**وَاللَّهِ لاَ يَأْتِيكُمْ مِنَ الْيَمَامَةِ حَبَّةُ حِنْطَةٍ ، حَتَّى يَأْذَنَ فِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** (مسند احمد رقم الحديث: 9621)

ژباړه: قسم په الله د يمامې څخه به يوه دانه د غنمو رانشي تاسو ته تر دې چې رسول الله صلی الله عليه وسلم پکې اجازه نه وي کړي.

دا دښمن ته يو مضبوط اقتصادي گوزار و چې ثمامة بن أثال رضي الله عنه ورکاوه ، نو لهذا په هر لار چې ممکن وي بايد مجاهدين هغه لاري استعمال کړي ترڅو د دښمنانو اقتصاد کمزوری کړي ، لکه څنګه چې هغوی هم همدا کار کوي چې هميش د مجاهدينو د اقتصادي منابعو پسې لړيدلي وي ترڅو يې په اقتصادي لحاظ کمزوري کړي.

## خاتمه :

**عزتمندو مسلمانانو!**

که مونږ او تاسې قران او سنت دقيق مطالعه کړو نو پوهه به شو چې دين اسلام مونږ او تاسې ته بار بار په جهاد بالمال امر کوي ، او د دې ترڅنګ د خپل نظام د اقتصاد د قوت سره سره يې ټول مشروع منابع هم مؤمنانو ته په گوته کړي ، چې بايد مؤمنان دغه لارې په کار واچوي ترڅو اقتصاد يې مضبوط شي او د مسلمانانو نظام په خپلو پښو ودريږي ، په همدې اساس اسلامي خلافت هم په خپل نظام کې د اقتصاد د تقويت لپاره مختلف ديوانونه جوړ کړي لکه ديوان الفيء والمغانم ، ديوان الزكاة ، ديوان الزراعة ، ديوان الركاز ، ديوان بيت المال او داسې نور ديوانونه چې هدف يې همدا دی چې د خپل نظام اقتصاد قوي کړي ، خپل رعيت ته خدمت ورباندې وړاندې کړي ، د خپل نظام دفاع پرې وکړي او ترڅنګ د الله د دښمنانو مقابله ورباندې وکړي.

وصلَّى الله وسلَّم على نبيِّنا محمَّد، وعلى آله وصَحْبِه اَجمَعِين

اسلام هغه دين دی چې په منلو يې الله تعالی پر مونږ احسان کړی، مونږ لپاره يې غوره کړی، او اسلام ته زمونږ په نسبت يې مونږ ته عزت راکړی، دا دين په پنځو ستنو ولاړ دی او تر هغې د يو بنده اسلام نه سمېږي، تر څو يې دا ټول نه وي اداء کړي، لکه څنګه چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (بني الإسلام على خمس: شهادة أن لا إله إلّا اللّه وأنّ محمّدا رسول اللّه، وإقام الصّلاة، وإيتاء الزّكاة، والحجّ، وصوم رمضان) [متفق عليه]

ژباړه: اسلام په پنځو ستنو ولاړ دی: د دې ګواهي ورکول چې له الله پرته د عبادت لايق څوک نشته او محمد د الله رسول دی، د لمونځ قائمول، د زکات ورکول، حج کول او د رمضان روژه نيول)

د دې سترو ارکانو له ډلې يو رکن چې ډيری خلک يې د ايمان د کمزورۍ او د الله او خالق څخه د نه ويريدو له وجې ودرولو ته پاملرنه نه کوي، هغه د زکات رکن دی، هغه رکن چې نفسونه ورسره پاکېږي او د بخل له ځنځيرونو آزادېږي.

د اسلام د ارکانو څخه د دې ستر رکن چې نښې يې تتې شوي او تول يې ګډوډ شوی، اهميت ته په کتنې د دې رکن د احکامو او د دې مشروعيت هدف روښانه کول لازم دي، تر څو مسلمانان يې په پوره ډول وپيژني او ترې خبر شي.



## د زکات حقيقت

**زکات په لغت کې** زياتوالي او غتيدو ته وايي، ويل کېږي: (زكا الزرع إذا نما وزاد) فصل غټ شو، ورسېد او زيات شو، د زکات سره هم مال زياتېږي، برکت پکې پيدا کېږي او د هلاکېدو، آفتونو او ختمېدو څخه يې ساتي.

عن أبي هريرة -رضي الله عنه- أن رسول الله ﷺ قال: (ما نقصت صدقة من مال..) [مسلم].

ژباړه: له أبو هريره -رضي الله عنه- څخه روايت دی، رسول الله ﷺ وفرمايل: (صدقه (خيرات) مال نه کموي...) [مسلم].

**شرعي تعريف:** دا په ځانګړي مال کې، د ځانګړې ډلې لپاره په ځانګړي وخت کې، يو واجب حق دی.

د دې لپاره مشروع شوی چې په زړونو کې د ايماني وروولی، شفقت او مهربانۍ احساس وکړي، د مسلمانانو ترمنځ د يو بل سره د اوږه په اوږه ودريدو نظام قوي کړي، نفسونه د انانيت، خودپسندۍ او تمې له خويونو آزاد کړي، خرچه کوونکی د ګناهونو له خيرو پاک کړي او د بخل، سختۍ او نورو رذيلو خويونو له ګندګيو يې صفا کړي، الله تعالی فرمايي: [خُذْ مِنْ أَمْوٰلِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ] [التوبة].

ژباړه: «[اې پيغمبره!] ته د هغوی له مالونو څخه د صدقې په اخيستلو سره هغوی پاک کړه او (د نيکۍ په لاره کې) هغوی وهڅوه. او د هغو په حق کې د رحمت دُعا وکړه، ځکه چې ستا دُعا به د هغو لپاره د ډاډينې وسيله وي. الله هر څه اوري او په هر څه پوهيږي»

## په اسلام کې د زکات درجه

په دين کې د زکات درجه زياته ستره او ځای يې پورته دی، د قرآن په ډېرو آيتونو کې د لمانځه سره پيوسته ذکر شوی، د ايمان د رښتينولی لپاره عنوان او دليل ګرځول شوی، د هغوی چې د الله د ورکړې مال څخه منع کوي او د هغو مؤمنانو ښکاره کوونکی او جلا کوونکی دی، چې د الله امر ته غاړه ږدي او د مال حق ورکوي، چا چې په ايمان، اخلاص، د ثواب په نيت، په خوشاله زړه، د اجر او د الله څخه د بدلې په اميد زکات ورکړ، په اخروي کور کې به نجات، او په دنيا کې به برکت، مال کې زيادت او ډېروالی ومومي، او که چا ترې د کفر په وجه انکار وکړ، يا يې د بخل له وجې منع کړ، په دنيا کې به ترې په زور واخيستل شي او په آخرت کې به ورته د دردونکي عذاب سبب شي.

الله تعالی فرمايي: {إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا الزَّكَوٰةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ} [البقرة]، ژباړه: «هو، کوم کسان چې ايمان راوړي او غوره عملونه وکړي او زکات ورکړي، د هغو ثواب بې شکه د هغو له رب سره دی او پر هغو څه ويره او کړاو نشته» بل ځای الله سبحانه وتعالی فرمايي: {وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَا فِيٓ أَمْوَٰلِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُوا عِندَ اللَّهِ وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن زَكَوٰةٍ تُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُونَ} [الروم]، ژباړه: «کوم سود چې تاسي ورکوئ، چې د خلکو په مالونو کې په ګډېدلو سره هغه زيات شي، د الله په وړاندې هغه نه زياتيږي. او کوم زکات چې تاسې د الله د خوښی تر لاسه کولو په اراده ورکوئ، د هماغه ورکوونکي په حقيقت کې خپل مال زياتوي» ابن کثير فرمايي: يعني هغه کسان چې الله ورته څو چنده بدله او ثواب ورکوي، لکه په صحيح کې دي: (وما تصدق أحد بعدل تمرة من كسب طيب إلا أخذها الرحمن بيمينه، فيربيها لصاحبها كما يربي أحدكم فلوه أو فصيله، حتى تصير التمرة أعظم من أحد)، ژباړه: (يو کس د حلال کسب څخه د يوې کجورې هومره صدقه نه کوي، مګر رحمان ذات يې په ښي لاس اخلي او د دې صدقه کوونکي لپاره غټوي، لکه يو څوک چې د آسپي يا د اوښ بچی غټوي، تر دې چې دا کجوره له احد غر لويه شي)» [التفسير].

## د زکات په اداء کولو کې د کمۍ او بې غورۍ کولو خطر

ډېری آياتونه او نبوي احاديث راغلي چې د هغه چا په حق کې په کې سخت وعيد



راغلی چې زکات د بخل او شومتیا له وجې نه ورکوي، یا یې کم مقدار ورکوي، یا یې چې وخت د وتلو پوره شي، ژر یې نه ورکوي، الله تعالی فرمایي: {وَوَيْلٌ لِلْمُشْرِكِينَ * الَّذِينَ لا يُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُمْ بِالآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ} [فصلت]، ژباړه: «او هلاکت دی د مشرکینو لپاره، هغه کسان چې زکات نه ورکوي او په آخرت کفر کوونکي دي» کله چې یو کافر او یا له مؤمنانو څخه د عذاب کوم مستحق په قبر کې کیښودل شي، نو ډیر سخت، بوږنوونکي او ډاروونکي صحنې ویني، که چیرې د زکات له منع کوونکو څخه و، نو له مال، پیسو، درهمو او دینارو څخه به ورته یوه بدشکله اژدها جوړه شي، چې زهر به ترې څاڅي، بیا به یې له بدن څخه تاو شي، اول به یې لاس تیر کړي، هغه به وژوي بیا به وریږي همداسې ټول بدن یې وخوري، په بخاري کې د أبو هریره څخه مرفوعا نقل دي، فرمایي: (من آتاه الله مالا، فلم يؤدّ زكاته مثّل له ماله يوم القيامة شجاعا أقرع له زبيبتان يطوّقه يوم القيامة، ثمّ يأخذ بلهزمتيه -يعني بشدقيه- ثمّ يقول أنا مالك أنا كنزك، ثم تلا عليه السلام قوله تعالى: {وَلاَ يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آتَاهُمُ اللّهُ مِن فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُواْ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلِلّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَاللّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ} [آل عمران].

ژباړه: چا ته چې الله مال ورکړي او هغه بیا زکات اداء نه کړي، مال به یې د قیامت په ورځ د یو خطر ناک سپین سري مار (اژدها) په شکل شي، چې د سترګو د پاسه به یې دوه تور ټاکي وي، دا به یې له غاړې تاو وي او دواړو وخکو باندې ورته چکونه لګوي او ورته به وایي: زه ستا مال یم، زه ستا خزانه یم، بیا نبي ﷺ دا آیت ولوست: ژباړه: «کومو خلکو ته چې الله له خپل فضل څخه ورکړه کړې وي؛ او بیا هغوی له بخیلۍ څخه کار واخلي، هغوی دې دا نه ګڼي چې دا بخیلي د هغو لپاره ګټوره ده. نه، دا د هغو لپاره ډېره بده ده. څه شی چې هغوی په خپله شومتیا راغونډوي، هماغه به د قیامت په ورځ د هغو د غاړې طوق شي. د اسمانونو او ځمکې میراث یوازې د الله دی. او تاسې چې څه کوئ، الله پرې خبر دی» دا په برزخي ژوند کې د هغه چا عذاب دی چې په مال بخل کوي او عذاب نه ورکوي، هر چې د جهنم عذاب دی، نو د هغې خبر الله داسې ورکړی دی: {وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ * يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ} [التوبة]. ژباړه: «او هغه خلک چې سره او سپین زر خزانه کوي او د الله په لاره کې یې نه لګوي؛ نو دوی ته د دردناکه عذاب زیری ورکړه، یوه ورځ به راشي چې په همدې سرو سپینو زرو به د دوږخ اور ګرم کړای شي او بیا به په هغو سره ددې خلکو تندي، اړخونه او شاګاني داغ کړه شي. دا هغه خزانه ده چې تاسې د خپلو ځانونو لپاره غونډه کړې وه. واخلئ، اوس د خپلې زیرمه کړې شتمنۍ خوند وڅکئ».

د زکات هغه مالونه چې دې خلکو منع کړي دي دا به اور ته واچول شي، کله چې ښه ګرم شي، بیا به پرې د دوی تندي، اړخونه او شاګاني داغل کیږي، نو دا څومره سخت عذاب دی او ای څومره افسوس دی پر هغه چا چې مال جمع کړي او زکات په کې ورنکړي!

نو ای د مال جمع کوونکیه، ساتونکیه او پکې د الله حق نه ورکونکیه، د مال د زکات په ویستلو کې دې بیړه وکړه، دا ټول مالونه د سوال دي، او حتمي به

خپل مالک ته ګرځي، نو که چا په کې د الله حق ورنکړ، قريبه ده چې په زړه يې د نفاق مهر ووهل شي، نو بيا به تري هيڅ ډول خرچې او صدقات قبول نه شي، لکه څنګه چې الله تعالی فرمايي: [وَمِنْهُم مَّنْ عَاهَدَ اللَّهَ لَئِنْ آتَانَا مِن فَضْلِهِ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُونَنَّ مِنَ الصَّالِحِينَ * فَلَمَّا آتَاهُم مِّن فَضْلِهِ بَخِلُوا بِهِ وَتَوَلَّوا وَّهُم مُّعْرِضُونَ * فَأَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِي قُلُوبِهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ يَلْقَوْنَهُ بِمَا أَخْلَفُوا اللَّهَ مَا وَعَدُوهُ وَبِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ]. [التوبة]، ژباړه: «له دوی څخه ځينې داسې هم دي چې له الله سره يې ژمنه کړي وه چې: که هغه په خپل فضل سره پر موږ لورينه وکړه، نو موږ به خيرات ورکړو او نيک عمله به شو، خو کله چې الله په خپل فضل سره هغوی شتمن کړل، نو هغوی بخيلي غوره کړه او له خپلې ژمنې څخه داسې وګرځېدل چې پر هغې باندې يې پروا قدري نشته، نتيجه دا شوه چې د هغوی ددې بد لوزې له امله چې له الله سره يې وکړه او د هغو درواغو له امله چې وايي يې، الله د هغو په زړونو کې نفاق واچوه. د هغه حضور ته د وړاندې کېدو تر ورځې پورې به په هغه (نفاق) پسې تګ پرېږدي».

## هغه مالونه چې زکات پکې واجب دی

**لومړی ډول:** څاروي، چې په دې کې اوښان، غواګانې او ګډې بيزې شامل دي، کله يې چې شمېر ټاکلي حد ته ورسېږي، په څرځايونو کې څرېږي، او شپون ورته تول کال يا ډېری وخت خوراک په اخور نه وي ورکړی، په دې څارويو کې د زکات وجوب د رسول الله ﷺ په ډېری احاديثو کې ثابت دی او د اسلام علماوو پرې اجماع کړې ده.

**دوهم ډول:** په هغو فصلونو او ميوو ګې هم زکات واجب دی چې ذخيره کېږي او پيمانه کېږي، خو چې کله پنځه وسقو ته ورسېږي، وسق معلومه پيمانه ده، چې شپيته صاعه کېږي او ډک لوښی يې تقريبا د 647 کيلو ګرامه غنمو سره مساوي کېږي، دا فصلونه چې کله د روانو چينو، ويالو او بارانونو په اوبو بې له کوم مصرفه خړوب شي عشر زکات پکې واجب دی، او که خړوبول يې په مصرف وي (ټيوب، کاريز وغيره) يا لکه په برېښنايي آلاتو، څارويو او نورو شيانو سره چې خړوبېږي، بيا به پکې نيم عشر يا شلمه برخه زکات ورکول کېږي، الله تعالی فرمايي: {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ}، ژباړه: «ای مؤمنانو، هغه پاک او حلال مالونه چې تاسې ګټلي دي او هغه چې مونږ يې ستاسو لپاره له ځمکې څخه راباسو، د هغې يوه برخه خرچ وکړئ» او له نبي ﷺ څخه هم ثابت دي، فرمايي: (فيما سقت السّماء والعيون أو كان عثريّا العشر، وما سقي بالنّضح نصف العشر) [البخاري]. ژباړه: (په هغه څه کې چې آسمان او چينې يې خړوبوي يا يې خړوبول آسان وي (ويالې سيندونه) لسمه برخه (زکات) دی، او هغه چې په څارويو باندې خړوبيږي هغې نيمايي لسمه (شلمه) برخه ده) [البخاري].

**درېيم ډول:** پيسې دي، او په دې کې سره زر چې 85 ګرامو ته ورسېږي او سپين زر چې 595 ګرامو ته ورسېږي شامل دي، خو چې يو کال پرې تېر شي، په دې کې د سرو او سپينو زرو د ټول مقدار (ګرامونو) د لسمې څلورمه برخه قيمت زکات ويستل کېږي، د أثمان (پيسو) په معنا کې مروجه کاغذي پيسې هم داخل دي، برابره خبره ده که محلي پيسې وي او که بهرنۍ، خو کله يې چې قيمت د سپينو زرو نصاب (595 ګرامه) ته ورسېږي او يو کال پرې تېر شي، نو په دې کې به د لسمې حصې څلورمه برخه زکات ويستل کېږي، او په دې

د نبي ﷺ دا خبره دليل دی چې علي بن أبي طالب ته يې فرمايلي و: **(إذا كان لك مائتا درهم وحال عليها الحول ففيها خمسة دراهم وليس عليك شيء حتى يكون لك عشرون دينارا وحال عليها الحول ففيها نصف دينار فما زاد فبحساب ذلك)** [أبو داود].

ژباړه: (که تاسره دوه سوه درهم وي او يو کال پرې تير شي، نو په دې کې پنځه درهم زکات دی، او تر هغې درباندې (سرو زرو) کې څه نشته تر دې چې شل دينارو ته ورسيږي، نو بيا پکې نيم دينار دی او که له دې زيات وي نو په همدې حساب سره) [أبو داود].

**څلورم ډول:** د تجارت او سوداګرۍ توکي، له دې څخه مراد ټول هغه شيان دي چې د پيرلو او پلورلو لپاره تيار وي، لکه قيمتي غمي، ګاڼې، خوراکي شيزونه، حيوانات، ځمکې، د کور سامانونه، جامې، موټرونه، هر قسم مواد، کباړ، او نور سوداګريز توکي... څو کاله يې چې قيمت د 595 ګرامه سپينو زرو سره مساوي شي او يو کال پرې تير شي، نو بيا پکې د ټول قيمت د لسمې برخې څلورمه حصه زکات واجب دی، فعن سمرة بن جندب قال: **(كان رسول الله يأمرنا أن نخرج الصدقة مما نعده للبيع)** [أبو داود].

ژباړه: له سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دی فرمايي: (رسول الله ﷺ به مونږ ته امر کاوه چې په هغه څه کې زکات ورکړو چې مونږ يې د خرڅلاو لپاره تياروو) [أبو داود].

د ذکر شويو له جملې څخه به د هر څيز زکات له هماغه جنس څخه ويستل کيږي، مګر د سوداګريزو توکو زکات به د هماغه توکو څخه نه ويستل کيږي، بلکې قيمت به يې په زکات کې ورکول کيږي.

نور هم ډيرې مسائل او احکام او ډولونه په همدې قواعدو بناء کيږي، کوم مو چې ذکر کړل، او مسلمان ته پکار ده چې کوم ځای کې ورته ستونزه پيدا کيږي او يا اشکال ورته کومه مسئله کې جوړيږي، بيا دې په دې مسأله کې علماوو ته رجوع وکړي.

## د زکات اهل او مستحقين (وړ) خلک څوک دي

الله تبارک وتعالی د زکات او عشرونو په ورکړه کې خپله تقسيم کړی او يو نبي د انبياوو څخه هم دا تقسيم نه دی کړی، الله تعالی د زکات مستحقين اته ډوله خلک ښودلي، او فرمايلي يې دي چې همدوی د دې وړ دي چې زکات ورکړل شي او له دوی پرته يې بل چاته ورکول جائز نه دي، او که چا له دې پرته بل چاته زکات ورکړ، داسې معنا يې ده لکه د يو لمونځ وخت چې نه وي داخل او څوک لمونځ وکړي، دا اته ډلې په لاندې ډول دي:

**لومړی:** فقيران، دا هغه خلک دي، چې نه مال لري او نه د کار او کسب توانايي لري.

**دوهم:** مسکينان، دا هغه خلک دي چې يو څه کسب او کار کوي، خو هغه يې اړتياوې نه پوره کوي او نه ورته بسنه کوي.

**دريم:** عاملين، دا هغه خلک دي چې د خليفه او امام په امر زکات، صدقات او عشرونه راټولوي.

**څلورم:** مؤلفة القلوب، دا هغه خلک دي چې زکات ورته له دې وجې ورکول کيږي چې زړونه يې نرم شي او اسلام ته يې رغبت پيداشي، څو بعضو علماوو ويلي چې دا ډله خلک د دين د پوره کيدو او بشپړيدو سره ختم شوي دي.

**پنځم:** غلامان، دا له مسلمانانو څخه هغه مکاتب غلامان دي، چې له بادارانو خپله آزادي په پيسو اخلي، او په دې کې هغه بنديان هم شامل دي چې د دښمن په لاسونو کې ګير دي، هغوی ته هم زکات ورکول کيږي.

**شپږم:** قرضداران، دا هغه خلک دي چې د مباح يا نيک کار لپاره يې پيسې قرض کړې وي او بيرته له پورو ورکولو او ختمولو څخه

عاجز وي.

**اووم:** د الله په لار کې، له دې څخه هدف د الله په لاره کې جهاد دی، لکه د وسلو اخيستل، د خندقونو کنستل، د مجاهدينو مجهز کول او نور...

**اتم:** لاروی، دا هغه مسافر او ناآشنا خلک دي چې په لاره کې يې پيسې خلاصې کړې وي، او دومره پيسې ورسره نه وي چې خپل ښار ته پرې ځان ورسوي، نو دوی ته به هم دومره زکات ورکول کېږي چې دا پرې خپلې سيمې ته ورسېږي.

الله تعالی فرمايي: **{إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسَٰكِينِ وَالْعَٰمِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَٰرِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ}** [التوبة]، ژباړه: «دا صدقې (زکاتونه) خو په اصل کې د فقيرانو او مسکينانو لپاره دي، او د هغو خلکو لپاره دي چې د صدقو د چارو مامورين وي، او د هغو لپاره چې زړونه يې په لاس راوړل مقصد وي. دغه راز دا د غاړو د ازادولو او د پوروړو د مرستې لپاره د الله په لار کې (مجاهدينو او جهاد) او په مسافر پالنه کې د استعمالولو لپاره دي. د الله له لورې يوه فريضه ده؛ او الله په هر څه پوهېدونکی او د حکمت څښتن دی».

که چيرې سوداګر، د مالونو خاوندان، د جايدادونو او ځمکو لرونکي، مالدار، د کاروبار او معاشاتو خاوندان د خپلو مالونو سم زکات وباسي او دوکه او نيمګړتيا په کې ونه کړي، نو مونږ به په ټولنه کې سوالګر، فقير، مسکين، بې سرپرسته او بې ماله څوک ونه مومو، مګر اوسنی حالت د بخل او د نفسونو د شومتيا له وجې رامنځته شوی، والله المستعان.

له الله جل الله جلاله څخه غواړو چې په ځمکه اسلامي دولت ته تمکين ورکړي، تر څو له شتمنو مسلمانانو مالونه واخلي او په اړمنو او فقيرانو يې د رب العالمين د امر موافق ووېشي.

وصلی الله وسلم علی نبينا محمد وعلی آله وصحبه أجمعين.





**الحمد لله الذي جعل الصيام من أركان الإسلام ومنّ على عباده بمواسم التوبة والمغفرة والإكرام، والصلاة والسلام على خير الأنام الذي بشر من صام رمضان إيمانا واحتسابا بغفران الخطايا والآثام.**

**امابعد**

قال الله تعالى : **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ.** البقرة ~ ١٨٣

مومنانو مسلمانانو ٬ يقينا رب العلمين زمونږ دين کامل او پوره کړې دی او دا په موږ او تاسې دد الله غټ نعمت دی ، نو د عاقل مومن مسلمان صفت دادی چې کله په دين اسلام کې د ډیرو فضيلتونو أجرونو او ثوابونو وخت يا ځای مونده کړي نو دا ورته خوشحاليږي او د يو غټ نعمت په نظر ورته ګوري او په دغه وخت او ځای کی د خپل رب مختلف عبادتونه کوي او د ګناهونو نه ځان ساتي نو دغه د رمضان مياشت او وخت د ډیرو اجرونو ثوابونو او فضيلتونو ګټلو وخت دی او د خپل نفس د تربيت کولو او اصلاح کولو مياشت او وخت دی هر انسان ته پکار دي چې په دی مياشت کې خپل نفس ته د رب العلمين په عبادت باندی تربيت ورکړي او د عبادت خوند ورته ملاؤ شي او هر انسان ته پکار دي چې خپل نفس د ګناهونو نه په لرې کيدو سره عدت کړي او په نفس کې يې د هر قسم ګناه سره نفرت پيدا شي دغه د رمضان مياشت د اسلام د أحکاماتو زده کولو مياشت ده نو هر انسان ته پکار دي چې ددی مياشتې عزت او احترام وکړي.

مومنانو مسلمانانو ٬ په دی مقاله کې بعضې أحکام او مسائل د رمضان ذکر کوو دی دپاره چې مسلمانان د رمضان احکام او مسائل زده کړي او بيا د رمضان وخت او مياشت په نبوي طريقی سره تيره کړي او د رمضان اجرونه ثوابونه او فضيلتونه ورته ملاؤ شي.

په اول کې د روژې اقسام ذکر کوو.



## اول:
## د روژې اقسام

روژې په دوه قسمه دي:

**۱ ـ فرضي روژې**

**۲ ـ نفلي روژې**

فرضي روژې بيا په درې قسمه دي:

**۱ ـ د رمضان روژې**

**۲ ـ د کفارو روژې**

**۳ ـ د نذر روژې**

خو مونږ په دی مقاله کې د رمضان د روژو بعضی أحکام او مسائل ذکر کوو:



## دويم:
## د روژې تعريف

**لغوي معنا** " صيام په عربی ژبه کې د يو شي نه ځان بندولو ته وايي.

**شرعي معنا** " الإمساك عن الأكل والشرب وسائر المفطرات مع النية من طلوع الفجر الصادق إلى غروب الشمس.

**ترجمه** "په شريعت کې روژه ديته وايي چې د سحر راختلو نه تر ماښامه پورې د عبادت په نيت باندی د روژې ماتوونکو شيانو نه ځان ساتل لکه خوراک څښاک جماع وغيره.



## دريم:
## د روژې أرکان

د مخکې تعريف نه معلوميږي چې د روژې دوه رکنونه دي

**۱ـ** د سحر داخليدلو نه تر ماښام پورې د روژې ماتوونکو شيانو نه ځان ساتل.

دليل " الله تعالى فرمايي: **فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ** البقرة ~ ١٨٧

ترجمه " نو اوس د خپلو ميرمنو سره کوروالې کوئ او ولټوئ هغه څه " يعني هغه اولاد " چې الله ستاسو دپاره ليکلي دی او خوراک څښاک کوئ تر دی چې د سبا سپين تار درته ښه واضحه شي " يعني د صبح صادق رڼا درته ښکاره شي " د تور تار



یعني د شپې نه او بیا روژه پوره کړئ تر شپې پورې یعني ماښام پورې.

مطلب دا چې د شپې ستاسو دپاره خوراک څښاک جماع وغیره جائز دي تر سحر داخلیدو پورې خو چې کله سحر وخت داخل شي نو بیا تر ماښام پورې د روژې ماتوونکو شیانو نه ځانونه وساتئ او روژه تر ماښام پورې پوره کړئ.

**۲** – رکن نیت دی " ځکه چې د رمضان روژه د الله تعالی عبادت دی او عبادت نه صحیح کیږي مګر په نیت سره صحیح کیږي او یو انسان به د عادت یا مرض او بیمارۍ د وجې خوراک نه کوي او یا به یې خوراک ته زړه نه کیږي نو دی انسان ته خو مونږ روژه دار نشو ویلی.

امام نووي رحمه الله په روضة الطالبین ۱/۲۶۸ – کې وایي " **لا یصح الصوم إلا بنيّة، ومحلها القلب.**

ترجمه " روژه د نیت نه بغیر نه صحیح کیږي او د نیت ځائ چې دی هغه زړه دی.

او په حدیث د بخاري او مسلم کې دي " نبي علیه السلام فرمایي "**إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ، وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوَى،...**

ترجمه ' یقینا د عملونو قبلیدل، جوړیدل او خرابیدل په نیت سره دي او د هر سړي دپاره هغه څه دي چې ده یې نیت کړې وي.

" بیا د نیت سره درې خبرې لازم دي "

**۱** – اول خبره دا چې دغه نیت به یقیني وي شک به پکې نه وي ځکه چې د شک روژه نه صحیح کیږی.

الهدایة ۲/۲۴۸ – والروضة ۲/۳۵۳ – وکشاف القناع ۲/۳۱۵

**۲** – دویمه خبره : تعیین دی " لکه امام نووي رحمه الله په روضة الطالبین ۲/۳۵۰ – کې او ابن قدامه په المغني ۳/۲۳ – کې وایي " په نیت کې به د رمضان د روژې تعین خامخا کوي ځکه چې صرف د روژې نیت کول صحیح نه دي.

مطلب دا چې یو انسان د رمضان روژه نیسي نو په زړه کې به د رمضان د روژې اراده کوي ځکه چې روژې خو ډیری دي او په نیت سره یو عبادت د بل نه جدا کول پکار دي.

**۳** – دریمه خبره : التبیت " یعني د شپې نه نیت کول. نو څوک چې فرضي روژه نیسي هغه ته پکار دي چې د سحر داخلیدو نه مخکې د روژې نیولو نیت وکړي.

دلیل " په حدیث د ترمذي.۷۳۰ نسائي .۲۳۳۱ او ابن ماجه کې دي. حفصه رضی الله عنها فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي **" مَنْ لَمْ يُبَيِّتِ الصِّيَامَ قَبْلَ الْفَجْرِ فَلَا صِيَامَ لَهُ "**

ترجمه " چا چې د سحر داخلیدلو نه مخکې د روژې نیولو نیت ونه کړو نو دده روژه نه صحیح کیږي.

او د رمضان روژو دپاره یو نیت نه کافي کیږي بلکې د هرې روژې دپاره به انسان د سحر داخلیدلو نه مخکې نیت کوي ځکه چې هره روژه ځانته عبادت دی اوله روژه ځانته عبادت دی او دویم ځانته او دریمه وغیره ځانته عبادت دی او د یوې روژې په اصلاح کیدو خرابیدو او سر ته رسیدو سره خو بله روژه نه اصلاح کیږي نه خرابیږي او نه سر ته رسیږي . او دغه خبره د مسلمانانو د مرکز نه رسمي نشر شوی ده.



## څلورم:
## د رمضان د روژو حکم

د رمضان روژې په هر مسلمان بالغ عاقل، په صحت روغ او مقیم باندې فرض دي

او د رمضان د روژو فرضیت په قرآن حدیث او اجماع سره ثابت دی.

د قرآن نه دلیل " الله تعالی فرمایي **" يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ** . بقرة ~۱۸۳

ترجمه " ای مومنانو په تاسو روژه فرض کړې شوی ده لکه څنګه چې ستاسو نه مخکې خلکو باندی فرض کړې شوی وه دی دپاره چې تاسو پرهیزګاره شئ.

حدیثو نه دلیل: په حدیث د بیهقي، نسائي، او مسند أحمد کې دي ابو هریره رضی الله عنه فرمایي " چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي " **قَدْ جَاءَكُمْ رَمَضَانُ، شَهْرٌ مُبَارَكٌ،**



